تللی دي؛ نوځکه په دې برخه کې زموږ معلومات لږ دي[۲] لکه څنګه ، چې ښايې هغه شان په دې باره کې لازم مواد په لاس کې نشته ، چې وړاندې يې کړو. البته دا جوته ده ، چې په هره تاريخي دوره کې صنايع د هغه وخت په شرايطو پورې اړه لري ، که سړی د احمدشاه بابا او تيمورشاه د دورې لاسي صنايع او صنعتي چارې ووينې دا به ترې جوته شي ، چې دا هنر په هغه زمانه کې ډېر پر مخ تللی و.

**معمولی هنر**: د تيمور شاه د پادشاهۍ دوران کې معمولي هنر او صنعت لکه خطاطي ، نقاشي، مهندسي ، ختګري ، ترکاڼي، حجاري، پښګري او ځينې نور کارونه کېدل. په دې هکله د هغو هنرونو لنډه څېړنه کوو، کوم ، چې نن ورځ هم د خلکو سترګو ته درېږي :

**خطاطي او نقاشي** : د دې هنر او صنعت ښې نمونې او نښې د زيارتونو او ماڼيو پرمخ ، چې په هغه زمانه کې يې ورباندې کار کړی و، لاس ته راځي. که ، چېرې د هغه وخت نقاشۍ او خطاطۍ ته وکتل شي دا ترې په ډاګه جوتيږي ، چې دا هنرونه په هغه وخت کې ډېر زړه وړونکی او پرمختللي وو. هغه خلك ، چې په دې غوره صنعت او هنر باندې لګيا وو د خپلې زمانې او وخت د ټولنيز ژوند لوړ مقام يې نيولی و.

[۲] پوپلزی عزيزالدين، درانی تېمورشاه ، ۱۳۳۳ کال، ۱۹۱ مخ

**مهندسي او ختګري** : که د هغه وخت قبرونو ، ګونبزو (ګنبدو) او نورو تاریخي اثارو ته وکتل شي؛ نو له هغې نه دا ښکاري ، چې په هغه زمانه کې د مهندسۍ او ختګرۍ هنر او صنعت ښه وړاندې او مخکې و . که ددې هنر پوخوالي ته ښه په غور ولېدل شي دا ترې جوتېږي ، چې د مهندسۍ هیڅ ډول عیب او زیان په هغو کې نه لیدل کېږي ، په دې برخه کې به یوازې او یوازې دا ووایو، چې د هرې زمانې او دورې د ختګرۍ (معمارۍ) سیستم له بلې نه توپیر لري ، چې دا د ختګرو او مهندسینو نقص نه ګڼل کېږي،[1] بلکې د خپل وخت او زمانې د خلکو د غوښتنې او پوهې په پرمختیا پورې اړه پیدا کوي او څنګه ، چې زمانه او خلك یې غواړي هغه شان ته پرمخ درومي.

**حکاکي او زرګري** : د تېمورشاه د سلطنت په دوره کې ددغه هنر او صنعت جوتې نښې او نمونې د هغه وخت د سکو ، مسکوکاتو او مهرونو د لیدلو نه په ښه شان سره معلومېږي او سړی ویلی شي ، چې په حقیقت کې د هغې ورځې د حکاکۍ صنعت د نن ورځې له زانګو ګرافۍ سره هیڅ توپیر نه لري. دا ځکه ، چې د یوه مهر کېندل او د مهر په نیمایي قطر باندې د نستعلیق د خط چپه لیکل خورا ګران او سخت کار و ، چې په

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین، درانی تېمورشاه، ۱۳۳۳ کال، ۱۹۲ مخ

هغه زمانه کې ترسره کېده. که سړی ددې هنر او صنعت ښکلي والي ته ځير شي؛ نو به ووايي ، چې دا دروند کار په هغه وخت کې په ښه شان سره پرمخ تللی و. ددې صنعت او هنر کمال په دې کې و ، چې د مهر د کيندلو سره سره د مهر پرمخ د ټکيو د اړخونو سره د پاڼو او ګلانو رسم او انځور هم ترسره کېده او خورا ښکلې او ښايسته بڼه يې درلودله.

د تيمورشاه د حکومت په زمانه کې د زرګرۍ صنعت ډېر په زړه پورې کار و. زرګرانو هر ډول ښکلي شيان په ډېر ښه شان سره جوړول، له دې پرته د تيمورشاه په دوران کې پښګرۍ، وسله جوړول ، کالي ګنډل ، د دباغۍ او مسګرۍ صنعت د وخت د اړتياوو د پوره کېدو په غرض منځ ته راغلي وو او ډېر ښه وړاندې تګ يې موندلی و . که ، چېرې د خپل وخت اړتياوو ته ځير شو؛ نو به دا راته معلومه شي ، چې نن ورځ هم د هغو نمونې موږ ته را پاتې دي.د تيمورشاه د وخت د مشهورو څو تنو نقاشانو نومونه دادي :

د تيمورشاه د دورې نامتو او غوره نقاش محمدهاشم نومېده. دی په اصل کې د لاهور اوسيدونکی و. دې پیاوړي او تکړه نقاش سربېره پر خپلو ډېرو ښو ښو نقاشيو او هنرونو ، چې زيات شهرت او نوم يې درلود، د تېمورشاه د ماندينې ګوهرشاد

بیګم یو په زړه پورې انځور کښلی و ، چې د ډېر ښایست له مخې د ډېر قدر وړ و ...

د تیمورشاه په وخت کې نامتو ډبر کښندونکی اقا بابای اصفهاني و ، چې د ډبرو او تیږو کښندنو په کار کې یې لوی لاس درلود او د خپل لیاقت په اثر یې د استاذۍ لقب ګټلی و .ده په هغه زمانه کې د ډېرو لویو او لوړو کسانو د مړتونونو (قبرونو) شناختې (تبۍ) او کتیبې په ښکلي او ښایسته بڼه سره جوړولې له دې دا څرګندیږي ، چې اعلیحضرت احمدشاه بابا او تېمورشاه دواړو د نیول شویو ملکونو له هنرمندانو او نامتو کسانو نه ، چې په هنر کې یې لاس درلود د خپل هېواد دپاره په دې کار کې ښه ګټه اخیستې وه [1]

## ۳- تجارت :

که د تېمورشاه د دورې ـ تجارت او سوداګرۍ ته کتنه وشي؛ نو به دا راڅرګنده شي ، چې تجارت دده په زمانه کې ښه وړاندې تګ کړی وُ وايي، چې خپله پادشاه تجارت ته د خلکو پاملرنه اړولې وه .ده د لویو لارو د ساتنې دپاره تانه داران درولي وو ، په دې لارو د قافلو د تلو او راتلو له درکه ډېره ګټه تر لاسه کېده، ددې محصول د لاس ته را وړلو نه وروسته به دا پیسې

---

[1] پوپلزی عزیزالدین، درانی تېمورشاه، ۱۳۳۳ کال، ۱۹۴ مخ

د دولت خزانې ته تحویلیدلې. د تېمورشاه په زمانه کې د هېواد ډېر وګړي په راز راز سوداګرۍ او تجارت باندې بوخت وو. د تجارت د ورو او راوړو په نتیجه کې خلك آباد او تجارت په زړه پورې وړاندې تګ کړی و. د هند او ایران مالونه د افغانستان په لویو ښارونو کې ددې هېواد د مالونو سره معاوضه او بد لیدل. دې حال او بنې د تجارانو کارونه پیاوړي کړي و. تجارانو به ښه ګټه کوله او تجارت د ښارونو په دننه او باندې کې ښه پرمختګ کړی و[1]....

---

[1] د زیاتو معلوماتو دپاره وګورئ درانی تیمورشاه

# پنځم فصل

## ادبي ښه او علوم :

د تېمورشاه د سلطنت او حکومت په دوران کې ادبياتو او علم ښه وړاندې تګ کړی وُ . له دې امله دده دوره د افغانستان د ادبياتو په برخه کې د غوره او ښو ادبي زمانو څخه شمېرل کېږي. په دې وخت او دوره کې نه يوازې ادبيات پرمخ ولاړل بلکې نورو علومو هم ښه وړاندې تګ وکړ. که د تېمورشاه د دورې د پوهې او علومو په هکله مطالعه وشي ؛ نو به دا ور څخه جوته شي ، چې د ده په وخت کې د فقې علم ، تفسير ، حديث ، صرف و نحو ، رياضي ، عروض ، معاني او طب په پوره او بشپړ ډول په مدرسو کې لوستل کېدل. البته په دې وخت کې مدرسو فردي بڼه درلودله. په دې سر بېره د پادشاه دربار د عالمانو او پوهانو ستر مرکز هم و.

تېمورشاه په خپله د علم او پوهې سره زياته مينه درلودله. دده د مينې نتيجه وه ، چې دده په دربار کې ډېر عالمان، پوهان او شاعران روزل کېدل. عالمانو او پوهانو دهغې زمانې مروج علوم او فنون په استاذانه ډول سره خلکو ته ابلاغول اوپه خپلو علومو کې يې د استاذانو لقبونه ګټلي وو

تېمورشاه په خپله شاعر او اديب و. دده دغه مقام دومره اوچت دی ، چې وروسته ده ددې ادبي مقام په درلودلو سره د افغانستان په لويو اديبانو کې ځای ونيو. ددې ادعا د اثبات دپاره دده د غزلو ، قطعو ، څلوريځو، قصيدو (بوللو) او نورو شعرونو دېوان په پښتو او فارسي ژبه تر اوسه په ياد را پاتې دی.

د تېمورشاه د حکومت په زمانه کې کوم شي ته ، چې د علم په باره کې ده توجه نه وه کړې هغه د پښتو ژبې نه پالل او نه روزل وو . که سړی دده د دربار د عالمانو په هکله مطالعه وکړي دابه ورته معلومه شي ، چې دده دربار له فارسي شاعرانو او عالمانو نه ډك و. دا کومه پټه خبره نه ده. دده د وخت د عالمانو له کتابونو نه په ډاګه سره ښکاري، چې سر بيره پر فارسي ژبو شاعرانو پښتو ژبو عالمانو هم په فارسي ژبه شعرونه ويلي دي. له دې معلومېږي ، چې دده په وخت کې د فارسي ژبې د ادب او د هغې د پاللو بازار ښه تود و .

اعليحضرت تېمورشاه د خپل پلار په شان يو اديب پادشاه و. په فارسي ژبه د شعر ديوان لري ، چې په ۱۱۱۹هـ (د پادشاهۍ) په ديارلسم کال يې له نظمه فارغ شوی دی، تيمورشاه په خپله مورنۍ ژبه پښتو ښه خوندور اشعار ويلي دي، مګر متاسفانه ، چې موږ ته ډېر لږ رارسېدلي او نور ورك

دي.د تېمورشاه پښتو شعرونه عشقي او بزمي رنګ لري.
په پښتو شعر کې يې د فارسي شعر په څېر ژبه روانه او بې
تکلفه ده.د سبك له مخې د خپل پلار شاګرد دی او په معنا کې
يوازې د بزم او عشق سندرې وايي.د پلار په څېر د وطن مينه ،
جنګ او اجتماعي ژوند په باب څه نه وايي.دده د ادبي مقام
د يادونې له پاره دده پښتو او دري غزلې دنمونې په ډول راوړو :

هې هې د يار صورت لکه ګلونه
چې وهلي يې پرمخ دي شنه خالونه
تېر شو عمر د وصال په انتظار کې
اوس په زړه مې د هجران لګي اورونه
په رخسار باندې يې زلفې تار په تار دي
د عاشقو آوېزان په هر تار زړونه
ـسـګ په دود ديار په غمو وسوم
يـ ـېر ناوکي ايږدي په زړه زخمونه
ـ کل دي پر خپل خدای کړه تېمورشاهه
ـه په کار دي د فاني دنيا کارونه [1]

* * *

وـزی عزيزالدين، درانی تېمورشاه، ۲۰۵ مخ

نن مې بیا له تورو سترګو سره جنګ دی
پر لبانو یې د زړه د وینو رنګ دی
که پرې کړی سر په لاس ورلره راشم
لا په دایې باور نشي زړه یې سنګ دی
ستا د حسن لښکر راغی ځان یې بایلو
د عاشق د زړه میدان هر ګوره تنګ دی
عشق د مشک پټول نشي تېمورشاهه
چې په خپله ځان رسوا کا هغه رنګ دی

* * *

دا هم فارسي غزل :

ای همدمان زآتش آهم حذر کنید
دلدار راز ح[illegible]ال دلم خبر کنید
ای مردمان زحسرت من یاد آورید
چون بر جمال سهر مثالش نظر کنید
ګوئید حال زار مرا پیش یار من
گر گیردش ملال سخن مختصر کنید
دانید [illegible] ئه است
گر سینه [illegible] سپر کنید
یا از سفر ستمگر یارا کنید منع

یا از من ستم زده قطع نظر کنید
دانید حال دیده شب زنده دار من
گر در فراق یار شبي را سهر کنید
یاران ز زلف یار بیادم نیاورید
دیوانه را مبادا که دیوانه تر کنید
تیمورشاه گشته زعشق یار جگر خون
فکری بحال عاشق خونین جگر کنید[1]

* * *

**دده د دوري ځيني شاعران او ليكوال دادي :**

عبدالله خان وکیل الدوله : دا پوه او عالم سړی د احمدشاه بابا د وخت نه تر تېمورشاه پورې د هېواد لوی او غټ شخصیت و او د حکومت په چارو کې یې ستر لاس درلود .دی د هغه وخت د ډېرو پخو او ښو شاعرانو او لیکوالو په ډله کې شمېرل کېده .عبدالله خان د پوره دیوان څښتن دی. شعرونه یې ( د الف ) له ردیف نه تر (ی) پورې دي او ټول درې سوه (۳۰۰) غزلو ته رسېږي ، چې په فارسي او پښتو یې ویلي دي. دده په شعر کې حمد و نعت ، مرثیه . بولله . د خلکو کیسې او تاریخې قطعې لیدل کیږي.

[1] پوهاند ی عزیزالدین، درانی تېمورشاه، ۲۰۳ مخ

د پیر محمد کاکړ هغه اشعار چې د خپل شاګرد د پادشاهۍ په باره کې یې کښلي دي دا دي:

پس له حمده له درووده | شوه د شاه مدحه مقصوده
شاه سلیمان دحکم نمر دی | کل عالم پرې منور دی
د شاه تخت سلیماني دی | عجب لطف یزداني دی
زیب زینت دی شاه د علم | سیال یې نشته څوك په حلم
په میدان د جنګ هم شېر دی | د اعدا په حق شمشېر دی
صاعقه د ده د قهر | ورانوي د دښمن شهر
پښتانه ور باندې شاد شوه | له همه غمه آزاده شوه
شاه زاده د علم کان دی | نن رونق د درست جهان دی
د دولت یې زه دعا کړم | دبخت خواست یې تل له خدا کړم
څو امکان د بقا وینه | دا آفتاب دې رب لرینه
چې عالم باندې روښن دی | تمام ملك په ده ګلشن دی[۱]

## د تیمور پادشاهي :

لکه‌چې د مخه اشاره وشوه،اعلیحضرت تیمور شاه د خپل پلار غازي اعلیحضرت احمد شاه بابا په وصیت او د سردار عبدالله خان پوپلزي دیوان بیګي او نورو مشرانو په ملاتړ او پلوي په کال (۱۱۸۶ق او ۱۷۷۳ع) کې د درانیو د قام د دوهم پادشاه په حیث پر تخت باندې کېناست او د افغانستان خپلواك پادشاه شو.

[۱] کاکړ پیرمحمد. د اشعارو دېوان. ۱۵ مخ

عبدالله خان وکیل الدوله د څو تالیفونو خاوند هم دی. ده یو کتاب د فقې د علم په هکله او بل یې د احمد شاهي فتاوې په نامه په ۶۸۸ مخونو کې، لیکلي دي. د وروستي کتاب سریزه د پښتو په اتیا بیتونو پیل شوې ده. دده بل اثر احمد شاهي شهر (کندهار) په نامه دی ، چې په فارسي ژبه کښل شوی دی. دده د احمد شاهي فتاوې د شعر نمونه دا ده :

ددې وخت پادشاه سني دی
په مذهب کې حنفي دی
محبت یې د کتاب دی
بې عددو بې حساب دی
دی په خپله مصنف دی
په دې کار کې ډیر منصف دی
هم عالم دی هم شاعر دی
په نکتو کې ډېر ماهر دی
چې دده دیوان هیرادی۔
په تحقیق سره هیرادی۔
حرص یې ډېر ددین په کار دی
ذوق یې ډېر ددې روزګار دی
دا یې ، فرمایل ماته

چـې يــو امــر کــوم تاتــه
مــاوې وايـــه اې پادشـــاهه
زمـــا شـــاهه ديـــن پناهـــه
وې يــې ډېر ميـــن پـــه ديـــن يـــم
د افغـــان پـــه کـــار غمګيـــن يـــم
دا کتـــاب ورتـــه پښتـــو کـــړه
پـــه تـــا حکـــم کـــوم وکـــړه !
مـــاوې هـــر څه ســـتا مـــامول دي
پـــه ليمـــو زمـــا قبـــول دی
مســـمی پـــه عبـــدالله يـــم
دعـــا ګوی د خپـــل پادشـــاه يـــم

همداسې يې د پښتو د شعر څه ګوښي بيتونه دا دي [1].

عبدالله د هيڅ منصب هوادار نه دی
دراستی د ښه کلام يم په اخلاص

* * *

خونه که مې وسوه د ښوالونه مې پاخه شوه
مشهور عبدالله خان وم اوس رسوا په عاشقی شوم

* * *

[1] پوپلزی عزيزالدين، درانی تېمورشاه، ۱۳۳۳ کال ۲۱۲ مخ.

محمد علم خان : محمد علم خان د عبدالله خان مشر زوی و ، دی د پلار د مرګ نه وروسته د وکیل الدوله په څوکۍ کېناست دا ډېر هوښیار سړی و. ټولو سدوزیو سردارانو هغه ته د پوهې او هوښیارۍ له مخې د احترام او درنښت په سترګه کتل. دده شخصیت هر چاته منلی و. ده د خلکو سره ډېره مینه او ښه ګوزاره درلوده.

وکیل الدوله محمد علم خان د پلار په څېر په پښتو او فارسي ژبو په ښه شان سره شعر ویلی شو. د پښتو شعر زیاتې نمونې یې نشته او یوازې څو نمونې یې معلومې دي. دا یو څو بیته یې د یو خطي جونګ نه رانقلوو :

ستا نوم شو محمد(ص) ته نازولی د صمد
په قل هو په احد عالم تېر کړه محمد(ص)
په نامه دې ډېر شیدا یم په دروغ نه په رښتیا یم
کلمه پر ژبه وایم عالم تیر کړه محمد(ص)

میرزا لعل محمد خان عاجز : لعل محمد خان د تیمورشاه طبیب و. سربېره پر طبابت هغه شعر هم وایه او ښه لیکوال ګڼل کېده او په فارسي ژبه دېوان لري.

الله یار خان راسخ : الله یارخان د میر هوتک خان سکنی کشر ورور دی. دی د فارسي ژبې ښه شاعر ګڼل کېږي ، دېوان یې

نه دی موندل شوی یوازې یو عشقي شعر د میر هوتک د لمسیو په واسطه پیدا شوی دی دا څو بیتونه یې د نمونې په ډول لیکو :

شب فراق نهان با خیال خود گفتم
بروبه بستر حوابش که غافل افتاده
بباغ عشق تو شاهانهال امیدم
ز خشک سالی هجران ز حاصل افتاده
شنیده ام که تمنای کشتنم داري
عجب عجب که ترا رحم بر دل افتاده
نمیرسد به زمین پای آرزوی دلم
ز بس به کوی تو دل بر دل افتاده
سر دو دیده ابرویش دید "راسخ" گفت
دو ماه نو چه بیک رو مقابل افتاده

## میر هوتک خان پوپلزی :

میر هوتك خان د زمان خان زوی او د تیمورشاه د دورې د لویو شاعرانو څخه گڼل کېږي دی د تیمورشاه د دربار د شاعرانو استاذ دی ده د هغې دورې تاریخ په شعر سره رښا کړی دی ده هغه دري شعر. چې د تیمورشاه په باب یې ویلی دی گورئ :

نظام ملك اسالم جهات شمع يقين
نهال باغ شريعت چراغ ملت و دين
ز فيض گلشن مدحش بهشت فرصت دل
ز وصف شکر نامش لب و زبان شرين
به هر کجا که بخواهم بقای دولت تو
کنند اهل سماوات يک قلم آمين

غلام محمد شاه جي :

دا خوږ ژبی شاعر ، چې په پښتو کوم شعر نه لري. د تيمورشاه د وخت نه د شاه شجاع تر سلطنت پورې ژوندی و او په خورا خواری يې د کابل په سيمه کې ـــــ تر وروستی سلګی پورې ژوند کاوه. وايې ، چې ده ښه خوږ شعر درلود.

دا شان د اعليحضرت تيمورشاه په دربار او زمانه کې مير محمد اولد"ذکا" عيدمحمد عيدی او ميرزا علی عسکر خان وصفی تکړه شاعران او ليکوال تېرشوي دي ، د شاعرانو د شعرونو نه جوتيږي ، چې د تيمور په دربار کې راټول شويو شاعرانو په فارسي شعرونه ويل.

## مذهبي بڼه :

د افغانستان وګړي ، چې ډېر يې د اسلام د مبارك دين پيروان دي [۱] سره له دې يې هم په دوو مذهبي فرقو باندې وېشلي شو : لومړۍ فرقه سني مذهبه ده ، چې ددې هېواد اکثريت نفوس يې جوړ کړی دی ، دوهمه فرقه اهل تشيع ده ، چې په لږ اقليت سره دلته ژوند کوي.

مسلمانان د اسلام مبارك دين د خپرولو دپاره دا ښه بولي، چې د نړۍ په هر ګوټ کې دا سپېڅلی او پاك دين خپور کړي ، په دې لار کې که له شدت نه کار واخستل شي ثواب يې ګڼي [۲] ...

د دغو تکيو پر بنا د افغانستان لويو فاتحينو او جګړنو تر تيمورشاه او له هغه نه وروسته د اسلام د دين د خپرولو او په دې نوم ددې مذهب د پيروانو د پيدا کولو په غرض تر هند پورې خپل يرغلونه پر مخ بيولي دي.دوی د خپلو يرغلونو په لړکې د نيول شويو ملکو خلکو ته ددې دين ګټې او ښېګڼې په زور او سلا ښکاره کړې دي.

---

[۱] الفنستن، د کابل د سلطنت او د هغو د توابعو د حال شرح، لومړی ټوک، ۳۱۶ مخ

[۲] الفنستن، د کابل او د هغه د توابعو د حال شرح، لومړی ټوک، ۳۱۷ مخ

کله به ، چې د نیول شویو سیمو خلکو او وګړو د اسلام د مبین دین منلو ته غاړه نه ایښودله؛ نو به هرومرو د دوی څخه باج غوښتل کېده. دېرو وګړو د اسلام د دین د منلو په صورت کې د باج ورکول په ځان منلي و[1]

که چېرې به د نیول شویو ملکونو خلکو پر ځان دا دوه شیان یا د اسلام د دین منل او یا باج ورکولو نه یو شی پر ځان نه منل نو به د دوی وژل او تباه کول ضروري وو.

الفنستن په خپل کتاب کې د یوه هندي مؤرخ په قول وايي، چې د پاني پت په جنګ کې کله ، چې به مسلمانانو پر اهل هنودو بری وموند اوکومه ډله به، چې دمال سره ددوی لاس ته ورغلله؛ نو سمدلاسه به یې د اسلام د دین منلو ته راوبلل[2].

دا حال او بڼه د تیمورشاه په دوره او وخت کې د پوره پاملرنې وړ وه. نن دا بڼه د اهل هنودو په باب د مسلمانانو سره نشته.لکه ، چې وینو نن ورځ یو زیات شمېر هندوان په افغانستان کې ژوند کوي او د مسلمانانو له خوا هغوی ته ډېر حقوق په برخه او اجتماعی متقابل احترام یې پر ځای کېږي. ددین او مذهب په لار کې هغوی ته پوره آزادي ورکړل شوې ده.

---

[1] الفنستن، د کابل او د هغه د توابعو د حال شرح، لومړی ټوک، ۳۱۷ مخ

[2] الفنستن، د کابل او د هغه د توابعو د حال شرح، لومړی ټوک، ۳۱۸ مخ

نن د مذهبي تعصب په نامه د هندوانو او مسلمانانو تر منځ هېڅ خنډ او اړه نه لېدل کېږي.

د افغانستان وګړي د اسلام د دين پيروان دي او د هغه اوامر او ارکان په خوښی سره لمانځي.په دې هېواد کې ملايان د ټولنيزو طبقو په لړکې ډېره زوره وره او د قدرت خاونده ډله ده، چې د هېواد د سياست او مذهب په لار کې يې ښه اثر کړی او قدرت يې ډېر زيات دی[1].

دوی په خپل منځ کې په څو ګروپونو وېشل کېږي ، د کلي له ملا څخه نيولې تر هرې درجې پورې ، چې وي يو له بله سره اړيکې لري.د تيمورشاه په وخت کې د دوی دغه اړيکې ډېرې زياتې او ټينګې وې.

## د تېمورشاه شخصيت :

تيمورشاه په طبيعي توګه يو سوله غوښتونکی او د جنګ نه ويزار انسان و[2].دا وجه وه ، چې د حکومت د ښه انتظام سره سره د هغه نه د سلطنت او خاورې د سرحدونو او صوبو د آزادی کوښښونه شروع شول.د تېمورشاه په پوهه کې څه شک

---

[1] الفنستن، د کابل او د هغه د توابعو د حال شرح، لومړی ټوک، ۳۴۰ مخ.

[2] کاکاخيل ظفر، پښتانه د تاريخ په رڼا کې، ۸۸۸ مخ.

نشته، خو سره له دې ده شراب څښل [۱] او د ولس د خوی او عادت په خلاف یې عیش خوښولو.

فریر وایي ، چې د تیمورشاه حکومت په افغانستان کې په عدل او انصاف مشهور دی، مګر له دې سره دی د پښتنو د ژوند په خلاف د نورو د فکر او معاشرت خوښووکی و.

نور موٴرخین وایي، چې تیمورشاه د پښتني کلچر په پرېښودو سره دومره افراط وکړ، چې ده او دده درباریانو پښتو ژبه هم هېره کړه او پر ځای یې فارسي ژبه او کلچر د کابل په دربار کې لوړ ځای ته ورسوله. دا وجه وه ، چې د تیمورشاه له دورې څخه د پښتو ژبې زوال پیل شو [۲] په دې وخت کې د دوتر ژبه فارسي وه. له دې عیبونو پرته تیمورشاه ډېر پوه او لایق پادشاه و.

---

[۱] قاضي عطاوله خان ، د پښتنو تاریخ، لومړی توک، ۱۴۱ مخ.

[۲] قاضي عطاولله خان، د پښتنو تاریخ، لومړی توک، ۱۴۷ مخ.

# شپږم فصل

## عمومي نظر او نتیجه :

د تیمورشاه ددورې په پای کې غواړو ، چې ځوتکي د تبصرې په ډول جوت کړو. البته دا ځوتکي زموږ د شخصي نظر په ډول وړاندې کېږي. د نظر خاوندانو څخه هیله کېږي، چې د نیمګړتیا او عدم صحت په حالت کې به هر ډول انتقاد وکړي.

د اعلیحضرت تیمورشاه سلطنت د افغانستان په تاریخ کې یو غوره فصل ګڼل کېږي، چې مطالعه او څېړنه یې هرومرود تاریخ کتونکي او مطالعه کوونکي په فکر زیات اثرات اچولای شي ، تردې څېړنې د مخه د تیمورشاه د سلطنت په باب له موږ سره یوازې ډېر محدود معلومات په ذهن کې موجود و ، خو کله مې، چې دده د دورې حقایق وسپړل د هغو شیانو عکس مې ولید کوم، چې فکر کېدو.

د تیمورشاه عصر د افغانستان د اتلسمې پېړۍ یوه ځلانده او مدني دوره شمېرل شوې ده ، چې د مدنیت تاثیرات یې تر اوسه په ثابت ډول زموږ د ټولنې پر ټولنیز ، اداري او نورو ساحو کې لیدلی شو.

## د پايتخت لېږدول :

اعليحضرت تيمور شاه دسلطنت د کېناستو نه ځو مياشتې وروسته خپل پاينخت له کندهار نه کابل ته ځکه نقل کړ چې :

- کابل ډېره ښه او معتدله هوا درلودله
- د تجارت له کبله يې ډېر زيات اهميت درلود
- د سياست لـه مخې يې هند تـه د نږديوالي لـه املـه زيـات اهميت درلود
- له ټولو څخه ډېره غوره دا وه ، چې اعليحضرت تيمورشاه پـه دې کـار سره غوښتـل ، چې د کندهـار د خانـانو نـه بـه پـه هوسـا او آرامـه سـره حکومـت وکـړي او د هغـو لـه حملـو او يرغلونو څخه به بچ او په ځنګ وي [1]

تيمـور شاه پوهېده ، چې په کندهـار کـې پـه آرامـه سـره حکومت کولای نه شي ، دا ځکـه د احمد شاه بابـا د سلطنت او لويې امپراتورۍ پـه ځلانـده دوره کـې درانيـان پـه اقتصـادي ، سياسي او نظامي لحاظ د نورو قومونو نه ډېر غښتلي او ممتاز شول. ددې علت دا و، چې له يوې خوا دوی تـه تـر نـورو قومونـو زياته تنخوا ( معاش ) مقرره و او له بلې خوا د عسکري خدمت

---

[1] احديزاده امين الله، ۱۲ ټولګی تاريخ. ۱۳۴۶ کال. ۲۱ مخ

د تیمورشاه د نرم خوی او ښه سلوك په وسیله د هغه دوران ادبي وضع زموږ د مدعا د اثبات په خاطر کافي ده. داځکه، چې د هر عصر د آرامۍ او صلحې په نتیجه کې علوم او ادبیات انکشاف او پرمختګ مومي او خلکو ته د ادبي روزنې زمینه خامخا برابرېږي. برعکس که چېرې خونړۍ شخړې او د پرېشانۍ وختونه د تاریخ په پاڼو کې وګوروئ نو به په ډاګه راته ښکاره شي، چې په داسې وختو کې فکري او ذهني روزنه او وړاندې تګ یې د یوی ساري بېمارۍ ښه غوره کړې ده.

ځینو تاریخ پوهانو او مؤلفینو، چې یادونه یې ددې لنډې لیکنې په زیاتو ځایو کې راغلې ده د تیمورشاه په هکله یې سختې تبصرې کړې دي، چې هغه د ډېر تامل او احتیاط وړ دي ځینو دی یو ایرانی مشر به او شراب خور معرفي کړی، چې په دې هکله یې کوم ماخذ هم نه دی ښوولی.

په هر صورت که هر څومره تیمورشاه یو آرام او حلیم سړی و ، ددې وضعې سره سم یې داسې کرکتر هم درلود، چې د هغې په وجه ده وکولای شول د ټول افغانستان د اتباعو ترمنځ د پردیتوب او بیګانګۍ خنډ ورك کړي او د دې پر ځای د یووالي، همنوعۍ او بشریت فکرونه په کې پیدا کړي. د دغې مدعا ښه مثال موږ دا ګنو : ده ددولت چارې د هېواد بېلو

بېلو اتباعوته پرته د قبیلوي، اجتماعي او یا ژبنیو تبعیضونو ځخه نورو ته هم ور وسپارلې، ده د هېواد سوکالي ، د وطن د آبادۍ، وړاندې تګ او د مملکت د چارو د حل و فصل کار یو مشترك مسؤولیت وګاڼه. ددې فکر په واسطه سره تېمورشاه د خپلو اساسي تشکیلاتو بنسټ په ښه توګه کېښنود او د قبایلو زیاتې مداخلې یې د دولت په چارو کې ، تر ډیره حده لږې کړې دده په وخت کې د سلطنت ټینګوالی او استحکام تامین و. که څه هم ځینو مؤلفینو لکه قاضي عطاوله خان او نورو دده سلطنت متزلزل ګڼلی. زموږ په نظر مدلل نه دی. داځکه ، چې دده په وخت کې ددولت مرکزیت په یقني ډول تامین او ټینګ و. هغه بې اتفاقۍ او د یووالي نشتوالی، چې وروسته له ده په هېواد کې دده د زامنو تر منځ را پیدا شوې ځانته علت لري، هغه دا ، چې که د تاریخ پاڼې په ډېر دقیق ډول له پخوا ځخه تر اوسه ولېدل شي، وینو ، چې زیاتې کورنۍ شخړې د پادشاهانو زیاتو زامنو او اخلافو تر منځ پیښې شوې دي. دا کار خامخا د ملت په بربادۍ تمامېده اود دولت بېړۍ یې د خطرناك ساحل و خواته بیوله.

د افغانستان ډېرو شاهانو علاقه درلوده ، چې ډېرې ښځې وکړي البته د دغو زياتو ښځو څخه زيات اولادونه پيدا او پاتې کېدل . ضرور به د دوی ترمنځ د دولت په چارو باندې اختلاف سره راته او يو له بله يې د تخت کېناستو په کرسۍ باندې سره ټکول لګه. چې د تېمورشاه د ۳۳ زامنو ترمنځ ددې هيواد په غرورغو کې ډېرې وينې تويې شوې دي د تيمورشاه د مړينې نه وروسته حالات ډېر ژر بدل شول د سدوزيو د سلطنت ولې او رېښې چنجيو وخوړې او په ډېره کمه موده کې ددې سلطنت ونه و چه او دايبرې (حاصل) نه د مخه د خزان باد يې پاڼې وربژولې تېمورشاه پوه وه ، چې دده اولاد د خپل پلار اطاعت نه مني او هم د بېلو بېلو اقليمونو د ميندو زامن دي؛ نو د سلطنت د ختمېدو ګومان يې د زامنو تر منځ په يقين سره ګڼلی و .

## د تېمورشاه اولاده او نومونه يې :

۱ شهزاده همايون
۲ محمود
۳ حاجي فيروزالدين
۴ عباس
۵ شهزاده کندل
۶ زمان
۷ شجاع الملك
۸ احمد
۹ محمد سلطان
۱۰ يزدان بخش
۱۱ کشور
۱۲ سلطان علی
۱۳ نادر ميرزا
۱۴ اشرف
۱۵ مظفر
۱۶ جهان والا
۱۷ مراد
۱۸ ميران ميرزا
۱۹ حسين ميرزا
۲۰ هاشم
۲۱ شاه تور
۲۲ نورده
۲۳ ملک گوهر
۲۴ اکبر
۲۵ حسن
۲۶ بلنداختر
۲۷ شاه رخ
۲۸ شاه پور
۲۹ شهزاده ابراهيم
۳۰ مزخ
۳۱ خاور
۳۲ ايوب
۳۳ جلال [۱]

يادونه :

د تيمورشـــاه د زامنـــو شـــمېر درې دېرش (۳۳) و او د لورګانو شمېر يې له ديارلسو (۱۳) څخه زيات وو

---

پوپلزی عزيزالدين، درانی تېمورشاه: ۱۳۳۳ هـ ش کال، ۵۰ - ۵۱ مخونه

## د دې لیکنې د ماخذونو پېژندنه :

له کومو ماخذونو څخه ، چې په دغه رساله کې استفاده شوې ده،د مطلب په بیان کې یو له بله سره توپیر لري.دهر ماخذ مؤلف د خپل وس په توان د افغانستان د تاریخي پېښو د پېښو په لړ کې خپله لیکنه غوره بللې ده.له دې سره سره د دوی تر منځ دموادو اقتباس او یو شان والی ډېر ځله لیدلی شو. سره له دې هم داسې اړیکې شته، چې هغه له یو بل څخه بېلولای شي.مونږ دلته د کتاب د چاپ ځای ، کال د پېښو او مطلب لنډه څېړنه څرګند ول غواړو.

الف : فارسي ماخذونه :

۱ - سلطاني تاریخ :

دا کتاب د سلطان محمد خان دراني پواسطه لیکل شوی او د افغانستان د تاریخ په تېره د درانیانو په باب یې ډېر خوندور معلومات په خوږه قلمی ژبه ټول کړي دي . دا کتاب د بمبي دمعموره بندر په محمدي نومي چاپخانه کې په کال ۱۲۹۸ طبع شوی دی.ددې تاریخي کتاب متن ، چې سړی ګوري داسې غوره مطالب لري، چې لوستل یې سړي ته خوند ورکوي.

دا کتاب په دوه سوه یونوي مخونو کې لیکل شوی دی او لیکوال زیات زحمت پرې ګاللی دی.د سلطاني تاریخ غوره او دراندہ مطالب د یوې سریزې په ګډون دادي :

د افغانستان وضع د اسلام د منځ ته راتلو سره ، د افغانانو نسب، د لودیانو بیان، سوریان (شیرشاه سوري ...)، د سورد افغانانو د حکومت پای په هند کې ، د ابدالیانو بیان د غلزیو شرح او پای، نادرشاه افشار، احمدشاه بابا ، تیمورشاه، شاه محمود ، شاه زمان، شاشجاع الملك او شاهزاده کامران ، ختم.

دغه اثر، چې په پخوانی انشاء لیکل شوی دی عبارات یې ډېر په عربی دي او د هغوی معنی کول ضروري کار دی ، سره له دې هم ددې کتاب د بیان لار ډېره خوږه ده او کټ مټ د یوه داستان بڼه غوره کوي ، تشبیهات او ادبي رنګ په کې ډېر دی . د متن په منځ کې یې په موضوع پورې تړلي شعرونه راوړي دي.

ددې کتاب یو زیان دادی، چې پراګرافونه یې په یو بل کې ګډ دي او په موضوع باندې سړی ښه نه پوهیږي ، سر بېره پردې دغه قیمتی اثر د ډېرې استفادې وړ او د درانیو د سلطنت یاد یې په لومړي توك کې په ښه شان سره راوړی دی، داسې معلومیږي، چې له دې وروسته مؤرخینو د خپلو تصنیفونو په لیکلو کې ور څخه ډېر مطالب اخیستی او اقتباس کړی دی

۲ - سراج التوارخ :

دا کتاب د سراج الاخبار لیکونـي مـلا فیض محمد هزاره لیکلی او د کابل د دارالسلطنه په حروفي مطبعه کې په کال ۱۳۳۱ق طبع شوی.

ددغه کتاب چاپ شوي ټوکونه دریو ته رسېږي او تر ډېرې پلټنې او تحقیق نه وروسته مې بیا موند . د کتاب اصل په پنځو ټوکونو کې لیکل شوی ، چې د هغو له لړ نه درې لومړي ټوکونه یې چاپ او دوه نور یې ، چې قلمي دي د پوهنې وزارت په کتابخانه کې قید (خوندی) دي.

د سراج التواریخ د پاتې دوو ټوکونو نه چاپېدل یو تاریخي کیفیت لري، چې لاندې په لنډ ډول اشاره ورته کول غواړم.

ملا فیض محمد خان څه وخت ، چې د سقاو ( حبیب الله خان ) له خوا د هزاره جات سیمې ته د هزاره ګانو د پلوي کېدو په غرض ولږه . دغه وخت و، چې مـلا فیض محمد د خپلې وظیفې په خلاف د هزاره جات د سیمې اوسیدونکي هزاره یې د غازي امان الله خان په پلوی او خوا را پاخول.دده له دې نیک حرکت نه کله . چې حبیب الله خان (سقاو) خبر شو، هغه یې ونیوو او ددې جرم په خاطر یې هغه ووازده او ددده عسیفونه یې وسوزول.

له دې امله د سراج التواریخ ټولې کاپۍ په کابل کې له لسو او پنځلسو نه زیاتې نه پیدا کېږي ، نو ، ځکه دا کتاب ډېر لږ او نادر بلل کېږي.

ددې کتاب دریم ټوك بیخي نه پیدا کېږي ، که پیدا شي قیمت یې لوړ او تر ۱۵۰۰ پورې رسیږي ، حال دا، چې د لومړي او دوهم ټوك بیه یې تر ۳۰۰ پورې ده..

د کابل پوهنتون کتابتون په دې وروستیو وختو کې په دې بریالی شو، چې د دغه قیمتي کتاب دریم ټوك پیدا کړي. فکر کوم ، چې ددې کتاب (اکسیشن) کتلاك او نورې مرحلې تر اوسه پورې د علاقه لرونکو د مطالعې له پاره اجرا شوې نه دي.

ددغه کتاب د لومړي او دوهم ټوك غوره بیان د سدوزیو پېښې او د محمدزیو تاریخ تر امیر عبدالرحمن خان پورې ګڼل کیږي، چې په ۳۷۷ مخونو کې په لویه قطع او صحافت لیکل شوی دی.

د سراج التواریخ د لومړی ټوك ډېر ځایونه د سلطاني تاریخ او ځینو نورو پخوانیو تاریخونو څخه اخیستل شوي. سره له دې هم ددې کتاب مطالب ، چې د نورو ژبو څخه د افغانستان په باب لیکل شوی دي ، خورا غوره او نوي ګڼل کیږي.

ددې کتاب دریم ټوك د امیر عبدالرحمن خان سلطنت ، څلورم ټوك د امیر حبیب الله خان دوره او پنځم يې د غازی امان الله خان پېښې څېړي، خو دا دوه وروستي ټوکونه يې تراوسه چاپ شوي نه دي.

۳ درانی تیمورشاه :

دا کتاب د عزیزالدین پوپلزي تالیف دی. د تاریخ ټولنې د ۲۷۰ لمبر په لړ کې د کابل په عامه مطبعه کې چاپ شوی ، د چاپ کال يې ۱۳۳۳هـ دی.

دا کتاب په دویمه درجه کاغذ کې په یوه منځنۍ قطع او صحافت لیکل شوی او د تیمورشاه دوران په ۲۵۴ مخونو کې څېړي او ددې دورې په باب يې ژوره څېړنه کړې ده. ددې کتاب ماخذونه سراج التواریخ ، سلطاني تاریخ د پښتنو تاریخ ، منشي احمد جان تاریخ او ځینې ځانګړي اسناد دي.

دا کتاب زما له دې نوې ټولونې سره دا عمومي توپیرونه لري :

دا ، چې زما ټولونه په پښتو لیکل شوې ده ، ددې ټولونې او درانی تیمورشاه کتاب ترمنځ مطالب له یو بل سره لرې اړه لري. ددې ټولونې توپیر ددې کتاب سره د بیان او مقاسیې په وخت ښه ښکاره کېږي ، چې لوستونکې په دواړو لړ درنګ وکړي.

ددې کتاب غوره اهمیت دادی ، چې د هغې زمانې ډېر مکتوبونه یې د متن سره د سند په توګه درج کړي دي. او لوستونکي د هغې زمانې فرمانونو او لیکنو ته اړ کولی شي.

۴ - عروج بارکزایي ها :

دا کتاب ادوارد الاسنیس پیرس خارجي لیکلی او ښاغلو عبدالرحمن پژواك او محمد عثمان صدقی ژباړلی دی.

دا کتاب په کال ۱۳۳۳ هجري شمسي د کابل په عمومي مطبعه کې په ۱۸۰ مخونو کې چاپ شوی دی ( دا کتاب د تاریخ ټولنې له خوا طبع شوی ).د تیمورشاه د زامنو اړودوړ او د احمدزیو د دورې سر او ابتدا یې په ډېر منظم او خواږه شان څیړلې ده.

ددې کتاب غوره ښیګڼه داده، چې د هر مخ په پای کې یې، ډېری تبصرې او پایلیکونه ( فوټ نوټونه ) ورکړي دي او سر بېره پردې یې ګڼ شمېر ماخذونه ښودلي دي.

زما ددې ټولونې په برخه کې ددې کتاب نه اخستنه او مرسته لړه ده، خو تاریخ لوستونکو ته خورا د ګټې وړ دی.دا کتاب ددې له پاره ډېر اهمیت لري ، چې یوه تن خارجی په ډېر زیار سره د هغه لیکنې ته اقدام کړی او په ډېره بې طرفی یې د ماخذونو دښودلو سره سره دافغانستان ددغو مشکلو او جنجالونو تیارو پېښو یې په تاریخي ښه رڼا اچولې ده.

په مقابل کې د ډېرو ملکونو او کروندو مځکو خاوندان وو او هم يې د فتوحاتو په لړ کې ډېرې ولجې تر لاسه کړې وې [۱]

د دغو ټکيو له مخې درانیان دومره غښتلي او قوي شوي وو . چې خپله حکومت ته د وېرې او خطر لوی خنډ او سرچينه وو . تیمور شاه . چې د دوی له راتلونکيو احتمالي يرغل او حملې نه ډارېده ، کندهار يې پرېښود او مرکز (پایتخت) يې کابل وټاکه،چې په دې ډول يې ځان لږ څه آرام او ډاډه حس کړ

پر تخت له کښناستو وروسته د تیمور شاه لومړنی غلطي دا وه . چې هغه خپله دارالخلافه د کندهار نه کابل ته نقل کړه ، ددې پېښې علت دا و . چې د کندهار د خلکو نه د سليمان ميرزا په ملګرتيا خپه شوی و له همدې کبله يې کندهار پرېښود چې کندهار د درانيو مرکز و.د دراني تیمور شاه په زړه کې دا شك و ، چې دراني زړور ، زورور او په شمېر کې ډېر دي . کله چې دوی يوه پادشاه ته اتفاق وکړي هغه د تخت نه کوز ولی او ايسته کولای شي [۲]

تیمور شاه د خپل پلار په خلاف د حکومت ډېرې غتې څوکۍ پرته له پښتنو نورو مشرانو ته په واك کې ورکړې ، دا هغه خلك وو،چې ډېر لږ يې پښتانه وو. په دې ډول سره تیمور

[۱] کاوون کاکر حسن، مالياتی سيستم . وږمې مجله، ۱۳۴۷ کال . ۷۶ مخ

[۲] قاضی عطاوالله خان، د پښتنو تاريخ، لومړی توک، ۱۳۸ مخ

۵ - رجال ورویداد های تاریخي :

دا کتاب د ښاغلي احمد علی خان کهزاد تالیف او د تاریخ ټولنې له خوا نشر شوی دی . دا کتاب ، چې د ۴۶ مقالو ټولونه ده په ۱۴۶ مخونوکې په منځنۍ قطع او ښه صحافت خپور شوی دی.

لکه ، چې د نوم نه یې ځرګندیږي ددې کتاب مطالب د افغانستان د غوره تاریخي شخصیتونو په هکله د احمدشاه بابا نه تر امیر شیرعلی خان پورې ده، چې په کې شامل او راغلي دي. لوستونکي کولای شي، چې ددغو مقالو په لوستلو سره د افغانستان د اتلسمې او نولسمې پېړۍ دمهمو پېښو نه په ښه شان خبر شي، ځوك، چې تاریخ لولي د هغو له پاره ګټور دی.

۶ - احمدشاه :

دا کتاب، چې دآریانا دویمې جایزې ګټونکی دی، ښاغلي غلام محمد غبار لیکلی دی او په کال ۱۳۲۲هـ ش کې په ۳۵۲ مخونو کې د کابل په عمومي مطبعه کې چاپ شوی.

ددې کتاب غوره موضوع ګانی دادي :

د احمد شاه لقب نامه ، د احمد شاه دراني وجه تسمیه ، تحصیلات ، صورت ، خوراك او څښاك، تفریح (سیل)، دربار، په تخت کیناستل ، افغانستان پخواله احمد شاه. اداري څېرکې، تشکیلات ، پای او جنګونه په کې راغلي دي

۷ - بالاحصار و پیش آمدهای تاریخي :

دا کتاب د ښاغلي احمدعلي خان کهزاد تـالیف او پـه دوو ټوکو کې لیکل شوی دی. دا کتاب پـه خوږه ژبـه او پخـه انشـاء تالیف شوی او د افغانستان د تاریخي اثارو په لړ کې یو ښه او غوره اثر ګڼل کیږي.

۸ - د ژونـدون مجلـې کلکسـیون ۱۳۴۸ کـال ، څخـه یـو څه استفاده هم شوې ده.

## پښتو ماخذونه :

### د پښتنو تاریخ :

دا کتاب د ښاغلي قاضي عطاوالله خان دی. د پښتنو پـه بـاب مطالب لري او پـه څلـورو ټوکونـو کـې لیکـل شـوی دی ، د لومړي ځل چاپ یې د پېښور پـه منظور عامـه مطبعـه کـې پـه کـال ۱۹۴۷ع کې تـر سره شـوې ددې کتـاب لومـړی ټوك، چـې ۳۰۸ مخونـو کـې دی د افغانسـتان تـاریخ لـه ۱۴۲۲- ۱۸۳۸ پوري څېړي.

دوهم ټوك یې لـه ۱۸۱۸ نـه تـر ۱۸۴۲ میـلادی پـورې د سـدوزیو د سـلطنت پـای تـر امیر دوسـت محمـد خـان پـورې څرګندوي.

د پښتنو تاریخ د سدوزیو د دورې په هکله پوره لیکل شوی او مطالب یې ډېر ښه دي. ددې کتاب غوره صفت دادی ، چې پراګرافونه یې په ښه شان مراعات شوي دی او ځای ځای یې د پوره کره کتنې له پاره د انګریزي مؤلفینو نظر یې کټ مټ په انګریزۍ د کتاب متن ته وردننه کړې دي.دا کتاب خورا درووند د ښو معلومات نه ډك دی.

۲ - پښتانه د تاریخ په رڼا کې :

دا کتاب د سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل تالیف او ۱۳۹۹ مخونو کې په پنډ ټوك چاپ شوی دی . دا اثر د پښتنو پېښې له ۵۵۰ قبل المیلاد څخه تر ۱۹۶۴ع پورې په لنډه توګه بیانوي.

دا کتاب په پېښور کې چاپ شوی او د مطلب بیان په لنډ ډول سره کوي.دا ، چې د څو پېړیو د پېښو بیان په یوه کتاب کې راغلی دی؛ نو ځکه یې لنډ څېړلي دي.

## انګریزی ماخذونه :[۱]

۱ - د کابل د سلطنت او د هغو د توابعو شرح :

دا کتاب د انګریزي مشهور تاریخ لیکونکي الفنستن تالیف دی ، چې په دو ټوکونو کې یې لیکلی دی.

دا کتاب د افغانستان د معاصر تاریخ په تېره د اتلسمې او نولسمې پېړۍ په هکله له غوره کتابو څخه شمېرل کېږي. ددی کتاب ارزښت د کورنیو تالیفونه ډېر دی، خو تراوسه نه دی ژباړل شوی.

ددی کتاب په لومړي ټوك کې د یوې سریزې په لرلو سره د افغانستان جغرافیایي وضع، اجتماعي ، مذهبي او تاریخي خواوې څېړل شوي دي او د پښتنو د دو دونو او کړنو په هکله ګټور معلومات وړاندې کوي.

دوهم ټوك کې د درانیو غلزیو د دغو دورو د تشکیلاتو په هکله ډېر معلومات لیکلي شوي دي او په پای کې یې د سدوزیو د سلطنت شرح شوې ده.

---

[۱] له انګریزی ماخذونو څخه پوهنیار نصرالله سوبمن ما سره ددې ټولونې په برخو کې بیخي زیاته مرسته کړې ده.

دا کتاب ډېر لږ پیدا کېږي ، ددې کتاب یوه کاپي د کابل پوهنتون په کتابتون کې شته. ددې کتاب د لیکلو لار ډېره په زړه پورې ده او هر لوستونکی په یقیني ډول ځانته راکاږي.

۲ - افغانستان :

ددې کتاب مؤلف آرنولد فلیچر دی او د متحده اضلاعو د کارنلر دیونیورستۍ له خپرونو څخه دی.

ددې کتاب موضوعات دادي :

زمکه او وګړي، پخوانی افغانستان له ۱۸۴۲- ۱۸۸۰ پورې ، عبدالرحمن خان د امپریالیزم اوج ، د نړۍ د دوو جګړو ترمنځ د افغانستان حال ، له ۱۹۴۵ نه تر ۱۹۵۳ پورې ، افغانستان او سوړ جنګ ، نوی او راتلونکی افغانستان.

ددې کتاب غوره خصوصیت دادی، چې هر څپرکی یې په یوه افغاني متل پیل شوی دی.

پای



# DURANAY
# TIMUR SHAH

**Research: Senior Research scholar Ali Mohammad Mangal**



Published: Sapi's Center for Pashto Research & Development

Add: Flat no.314, 3r Floor, Gul Haji Plaza, University Road Peshawar- Pakistan.
Ph / Fax: 091-5704506
**www.scprd@paknet.com.pk**

**Date:** **Nov.2003**

شاه هغه تر خپل احسان لاندې را وستل په دغو مشرانو کې لومړنی سړی قاضي فیض الله خان و، چې د شاهي فرقې مشري یې په غاړه واخیسته [۱]

د ظفر کاکا خیل په قول اعلیحضرت تیمور شاه عبدالطیف خان د محصول د ټولولو افسر او د قاضي عطاوالله په قول د وزیر په حیث وټاکه . تیمور شاه خپل ساتندوی او محافظ پوځ د اسحاق زیو څخه جوړ کړ ، چې دا د درانیو یوه خواره او کمزورې قبیله وه تیمور شاه له دوی سره د قزلباشو (۱۲۰۰۰) دولس زره کسیز پوځ هم ملګری‌کړ . تیمور شاه د خپل سلطنت په لومړیو وختو کې د پښتنو ولسي او بې قاعدې لښکر ، چې اعتماد یې ورباندې نه کاوه رنګ او لرې کړ. ددې پر ځای یې یو منظم تنخوا خور لښکر جوړ کړ. په دې توګه تیمور شاه د پردیو په ملګرتیا د قام له سردارانو او مشرانو سره خپلې اړیکې ورو ورو پرې کړې [۲]. ددغو کارونو په سرته رسولو سره تیمور شاه د پښتنو په فکر یو پردی او بېګانه پادشاه وګڼل شو او پښتانه بې له شکه د هغه نه ډېر زیات خواشیني او ناراضه شول.

---

[۱] کاکاخیل ظفر. پښتانه د تاریخ په رڼا کې. ۸۸۷ مخ

[۲] قاضی عطاوالله خان. د پښتنو تاریخ. ۱۴۰ مخ

## تیمور شاه او قامي مشران :

څه وخت‌چې تیمور شاه د افغانستان په پادشاهۍ وټاکل شو ، ده د قام مشري د حاجي جمال خان زوی سردار پاینده خان ته وسپارله ، نوموړي سردار د تیمور شاه په ګټه او لنګه (خوا، طرفداري) د درانیو بلوا، چې د شاولي خان په لمسون رامنځ ته شوې وه،شنډه کړه. په دې لنډ او حساس وخت کې د احمدشاه بابا تره عبدالخالق خان هم غوښته . چې د افغانستان پادشاه شي، خو هغه ډېره زر ماتې وخوړه او د ماتې له خوړلو سره یې سمدلاسه ونیو او په دواړو سترګو ړوند کړای شو. ظفر کاکا خیل په دې هکله په خپل کتاب "پښتانه د تاریخ په رڼا کې" لیکي او وایي چې : د تیمور شاه د پادشاهۍ د بې نظمۍ یو علت د مشرانو مناسبات او بل هغه قیامونه او بغاوتونه وو ، چې د هېواد په منځ کې را پیدا شول ددغو پېښو په نتیجه کې دده د سلطنت شېرازې کمزورې او د اومړي تار په څېر سستې شولې.

مونږ د مخه دې ټکي ته اشاره وکړه، چې د احمد شاه بابا له مرګ نه وروسته تیمور شاه د هېواد په کورنیو چارو کې له ډېرو خنډونو او ربړونو سره مخامخ شو. د تاریخ له پاڼو نه داپه ډاګه جوتیږي ، چې په دغه وخت کې درانیان په اقتصادي او سیاسي لحاظ د احمد شاه په پوره پاملرنه ډېر غښتلي او قوي شوی وو [1]

---

[1] کا ن کاکړ حسن ، وږمې مجله ، ۱۳۴۷ کال کلکسیون

تیمور شاه د مشرانو د خوارولو او کمزوري کولو له پاره له ډول ډول چالونو او لارو نه کار واخیست. همدا وجه وه ، چې د تیمور شاه د سلطنت په لومړیو وختو کې داسې پېښې را پیدا شوې ، چې دده او قام د مشرانو تر منځ اړیکې یې لنډې او پرې کړلې ددې له پاره ، چې دغې موضوع ته په ښه شان ورننوزو دابه ښه وي ، چې همدا پېښې تر پوره څېړنې لاندې ونیسو.

## تیمور شاه او وزیر شاولي خان :

څه وخت ، چې د لوی احمدشاه بابا رنځورتیا او ناروغي سخته شوه او په دې پوه شو، چې دې اجل (مرګ) له غشي نه شي روغیدای ؛ نو خپل وزیران او لوی مخور یې ځانته راوغوښتل او هغوی ته یې وویل : چې زه خپل زوی شهزاده تیمور د سلطنت په تخت او تاج باندې کښنوم او خپل ولیعهد یې کنم (۱).

د احمد شاه بابا له دې نظر سره ډېرو وزیرانو او امیرانو خپله خوښه او رضا څرګنده کړه، خو ځینو ته په دې تکي شك پیدا شو او پلمه (بهانه) یې جوړه کړه ، چې ولې اعلیحضرت احمد شاه بابا له مورږ نه په دې برخه کې مسلات او سلا ونه غوښتله ؟ بل تکی دا، چې ولې احمد شاه بابا شهزاده سلیمان ولیعهد نه کړ ؟

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین ، دراني تیمور شاه ، ۱۳۳۳ کال و ۳۱ مخ

لوی احمد شاه بابا، چې ډېر ناروغ و ددوی د قناعت دپاره یې داسې وویل :

" زما مطلب او هدف له دې کار نه یوازې او یوازې د ولس او خلکو خیر دی دا، ځکه، چې تیمور زما په ژوندانه کې ډېره پوهه، لیاقت او کفایت له ځانه څرګند کړی او د ښې ارادې خاوند دی. شهزاده سلیمان یو سست طبیعته او بې رحمه کرار زړه لري، چې د بلوا او بېښتنو د کرارولو په چل او تدبیر باندې نه پوهېږي دده د ظلم او ستم نمونه د سردار ذال بېګ خان افغان مرګ دی، چې دا زما د پاره ښه په زړه پورې مثال دی،نو،ځکه دی د ولیعهدۍ وړ نه دی... "[1]

د احمد شاه بابا له وینا وروسته د قام مشران پرته له وزیر شاولیخان او دده له ملګرو نه په دې اهم کار خوښ او راضي شول د وزیر شاه ولي خان ملا تړ د سلیمان له پاره د هغه د خپلوۍ له کبله و، ځکه شاه ولي خان خپله لور شهزاده سلیمان ته ورکړې وه. په دې وخت کې دده دا ډېر تینګار د خپل زوم د پاره د قام په مشرانو ، لویانو او سردارانو باندې بد ولګېد او له ده څخه یې طبیعت او مخ وګرځېد. د دغو مشرانو له ډلې نه مدد اسحق زی له ده څخه بېل او شهزاده تیمور ته ورغی او له دې سترګو لیدلي حال او پېښې نه یې زور په زور پوره خبر کړ

---

(۱) پرېلزی عزیزالدین، درانی تیمور شاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۳۱ - ۳۲ مخونه

د مدد اسحق زي له خولې څخه څه وخت ، چې تیمور شاه د وزیر شاولي خان او خپل ورور شهزاده سلیمان په دغه کار او عمل باندې خبر شو، نو بې له درنګ نه یې په هرات کې د عالمانو ، شیخانو، رئیسانو او نورو لویانو یوه درنده جرګه را غونډه کړه او هغو ته یې وویل چې : " زه خپل پلار په خپل ژوند کې ولیعهد وټاکلم. اوس ، چې هغه جنت پناه مړ شوی او دا بد له پاره یې سترګې له موږ پټې کړي دي،وزیر شاه ولي خان زه له سلطنت نه وشړلم او زما پر ځای یې شهزاده سلیمان ، چې له مانه کشر او وړوکی دی د سلطنت په څوکۍ او شاهي تخت باندې کېنولی دی همدا اوس یې په کندهار کې زما د پلار په خزانو (خورځونو) خېټه اچولې او په خو شال زړه یې ډډه پرې وهلې ده؛ نو اې زما وطنوالو ! تاسې سلا راکړئ ، چې زه ددې غاصب څخه د سلطنت د نیولو حق لرم که نه ؟ " [1]

د تیمور ددغې ونیا نه وروسته د هرات خلك له ده سره ودرېدل او د کندهار په لور را روان شول. د تیمور له راتګ نه، چې د قام مشران خبر شول د هغه د ملاتړ د پاره ودرېدل ، چې دغه حال به پرلپسې په وروسته کړښو کې څرګند کړای شي

[1] پوپلزی عزیزالدین. درانی تیمور شاه . ۱۳۳۳ کال . ۳۵ مخ

**له تیمور سره د عبدالله خان دېوان بیګي مرسته :**

د شهزاده سلیمان او شهزاده تیمور شاه د تخت کېناستو په خبرو کې شاه ولي خان د قام د نورو مشرانو د خوښې ، رضا او موافقې نه پرته د خپل قدرت او قوت په لاس سلیمان پر تخت کېناوه ، دده تر ټولو تر بګنو او مخالفو کسانو نه مخکې د پوپلزیو مشر او رئیس عبدالله خان دېوان بیګي په ډېره میړانه ددغه اقدام د شنډولو د مخنیوي د پاره ودرېد څه وخت ، چې سلیمان د تیمور له راتګ نه خبر شو، نو یې له وزیر شاه ولي خان ( خپل خسر ) سره سلا او مشوره وکړه دواړو په ګډه سره دا غوره وګڼله ، چې څو یا بوګان په اشرپیو (پیسو) بار د دوست محمد خان تر مشرۍ لاندې کلات ، ته، چې د غلزیو استوګنځی و، ولیږل څو ، چې په دغه ډول له هغه ځای څخه د پیسو په زور ورسره مرسته وشي. د دوست محمد خان بل ورور ، چې شېر محمد خان نومېده هغه یې د بلوچستان و خواته ولېږه ، چې د هغه ځای نه هم کومك وغواړي.

کله، چې سردار عبدالله خان دېوان بیګي د وزیر شاه ولي خان په فکر او شوم نیت پوه شو ؛ نو ورو ورو یې خپل ملاتړي (ملګ ـي) له کندهار څخه وابستل او خپلو کورونو ته یې ولیږل. دېوان بیګي د شهزاده تیمور په ملاتړ او لنګه کولو په ډېره

تینگه سره د وزیر شاولي خان نه مرور شو او ددې کار د شنډولو په فکر کې شو

د وزیر شاه ولي خان زوی دوست محمد خان کله ، چې د تیمور شاه له راتګ نه کندهار ته خبر شو سمدلاسه د عبدالله خان دیوان بیګی کور ته دننواتې او عذرکولو په نیت ورغی دیوان بیګي په ظاهره له هغه سره ډېر ښه وضعیت وکړ، خو په پټه او باطن کې یې ځوتنه په دې وګومارل ، چې هغه د خپل قام نه د باندې پرې نږدي او نظر بند یې وساتي ، د دوست محمد خان مور، چې د خپل زوی له نظربند کېدو څخه خبره شوله سمدستي او بې له درنګ نه یې خپل میړه ( شاولي خان) په دې مجبور کړ،چې دی له خپلو دوو نورو زامنو شکورالله خان او آزاد خان سره د عبدالله خان دیوان بیګي کور ته دروغې او سلا دپاره ورشي،

وزیر شاولي خان څه وخت ، چې د خپلو دوو زامنو او دوو خوریونو سره د دیوان بیګي کره ورسېد ، سمدلاسه د دیوان بیګي له خوانه ، بې له دې . چې خبرې ورسره وکړي ، بندیان شول د بندي کېدلو نه یې وروسته ټول شهزاده تیمور ته په ډېره مینه او خوشالی ور واستول تیمور. چې د وزیر شاولي خان نه ډېر کلك خپه ، خواشینی او اندېښمن و؛ نو انګو خان نامی یې

# لومړنی څپرکی

## د تیمور شاه په وخت کې د افغانستان حال :

اعلیحضرت احمد شاه بابا(رح) د خپل سلطنت په (۲۶) کلنه دوره کې نه یوازې ګران افغانستان خپلو طبیعي سرحدونو ته ورساوه ، بلکې د افغانستان کورنی او داخلي وضع یې هم تر ډېره سمه کړه ، قومي شخړې او تربګنی یې پای ته ورسولې او خپلو فتوحاتو ته متوجه شو. ده د مرکزي حکومت قوت په ټول هېواد او خاوره کې ټینګ کړ او هېواد یې د کارونو او چارو د اسانتیا د پاره په ولایتونو او حکومتونو ووېشه. هر ولایت به د یووالي له خوا اداره کیده. منظم عسکري تشکیلات یې جوړ او برابر کړل. ټولو خلکو په تیره بزګرانو د مالیې ورکولو ته کلکه غاړه کېښودله او دولتي خرڅونې (خزانې) یې ترې ډکې کړې لنډه دا، چې د حکومت داخلي او خارجي وضع یې په ډېرې آرامی او هوسایی سره دده پر ځای خپلو راتلونکو کینستونکو او اولادې ته برابره کړه . خو دده د پادشاهی زمانه په جنګونو او عسکري سوقیاتو کې تېره شوه، مګر راتلونکي وخت ته یې د خپلې اولادې د پاره آرامه لار پرانستلې وه...

په پته سره،چې د وزیر شاولي خان ډېر سخت او سر تېرى تربور و،دده او د هغه د زامنو د وژولو د پاره وګوماره انګو خان . چې په خپل ژوند کې دا ورځ له خدایه غوښته د اختر د ورځې په شان ورته خوشاله شو او دا کار یې په ډېر مینه او خوښۍ سره تر سره کړ؛ نو یې د وزیر شاولي خان او د هغه په زامنو خپله خوا یخه او درې واړه یې یو ځای ووژل [1] انګو خان بې له شکه د دوی وژلو ته دومره تږى و، چې د هغو خوارو په سرو وینو یې خپل لاسونه په ډېرې خوښۍ سره د نکریزو په څېر رنګ او سره کړل. د وزیر شاه ولي خان د وژلو سره سم د هغه دوه خوریونه د اسلام خان په لاس په هماغه ګړۍ کې یو ځای ووژل شول [2]. که لږ څیر شو وینو ، چې د خپلوۍ د پیوند له امله وچ او لامده دواړه یو ځای سره وسول او له بلې خوا د وزیر شاه ولي خان وژلو د قام د مشرانو تر منځ د خپګان او مخالفت اور لا پسې تازه کړ

[1] سلطان محمد. سلطاني تاريخ. ۱۲۹۸ کال. ۱۴۹ مخ

[2] پوپلزی عزیزالدین . دراني تيمور شاه. ۱۳۳۳ کال . ۳۹ مخ

**تیمور شاه او حافظ شیر محمد خان (د وزیر شاولي خان زوی):**

د تیمور او سلیمان د تخت کېناستو په موضوع باندې کله . چې وزیر شاولي خان د نورو مشرانو څخه خوا بدی شو: نو د تیمور د نه پادشاه کېدو د پاره یې خپل کوښښونه پیل کړل، لکه . چې د مخه مو وویل شېر محمد خان د خپل پلار له خوا څخه د مرستې او کومك د پاره نصیر خان بلوڅ ته ولېږل شو دی د څه مودې د پاره هلته پاتې و او هڅه یې کوله . چې د پلار د ملاتړ د پاره خلك پیدا کړي . مګر لکه ، چې ولېدل شول تیمور شاه د رارسېدو سره د دیوان بیګی په مرسته دده پلار . ورونه او د پلار خوریونه مړه کړل ؛ نو هغه له وېرې هلته پاتې شو تیمور شاه ، چې د شېر محمد خان له وېرې او اړودوړ د پېښېدو نه بېغمه نه و: نو ددې بلوا د پای ته رسولو په غرض یې نصیر خان بلوڅ ته یو پیغام ور واستاوه او له هغه څخه یې د شېر محمد خان د بېرته ستنېدو غوښتنه کړې وه نصیر خان بلوڅ، چې غیرتمن سړی و د شیرمحمد خان د لېږلو او استولو نه بیخي ډډه وکړه ، دده دا کار ددې د پاره و او پوهېده ، چې که چېرې سمدلاسه شېر محمد خان د تیمور شاه لاس ته ورشي ؛ نو دا به هم خامخا د هغه پلار او ورونو په څېر مړ کړي [1]

---

[1] پوپلزی عزیزالدین . درانی. تیمور شاه . ۱۳۳۳ کال . ۵۵ مخ

د وخت په تېرېدو سره کله ، چې شېر محمد خان ته دا جوته شوه ، چې تيمور شاه په کابل کې دی ؛ نو يې دا وخت د ځان د پاره غنيمت وګاڼه د خپلو ملګرو او لښکر سره له بلو چستان څخه راووت او کندهار ته راستون شو ، شېرمحمد خان ، چې هوښيار او ځيرك سړی و په کندهار کې يې د تيمور شاه په ګټه د عبدالخالق خان ورور ته ، چې د تيمور شاه پر ضد درېدلی و کلکه ماتې ورکړه. حافظ شېر محمد خان يوه عريضه د خپلو جرمونو د عفوې او ښښنې په غرض جوړه او ترتيب کړه ، د شهزاده همايون په شاهدۍ او کلك ملاتړ يې تيمور شاه ته ور واستوله [۱]

شهزاده همايون د حافظ شېرمحمدخان صداقت ، مېړانه ، مرسته او ملاتړ د عبدالخالق د ورور په ښه کې خپل پلارته يوه يو په پوره ډاډ څرګند کړ. کله ، چې شېر محمد خان ته موقع په لاس ورغله او د تيمور شاه سره يې په کابل کې ليدنه او کتنه وکړه ، د هغه عريضه يې په ډېر غور سره وکتله ، تيمور شاه ، چې د نرم زړه څښتن و ، سمدستي يې هغه وبښلو او ټول هغه مال او جايداد ، چې د خپل پلار (وزير شاولی خان) د مخالفت په اثر ورځنې ضبط شوی وو بېر ته ده ته په واك کې ورکړل. په دې ډول سره شېر محمد خان د تيمور شاه د ډېرو کلکو ملاتړو (ملګرو) څخه وګڼل شو [۲]

---

[۱] ادوار الايسس پيرس ، (د پژواک او صدقی ژباړه ) عروج بارکزايې ها ، ٦ مخ

[۲] ادوار الايسس پيرس ، (د پژواک او صدقی ژباړه ) عروج بارکزايې ها ، ٦ مخ

## تېمور شاه او سردار پاینده خان بارکزی :

اعلیحضرت تیمور شاه د تخت له کیناستنې وروسته سردار رحیم داد خان د حاجی جمال خان مشر زوی بارکزیو په سردارۍ او مشرۍ وټاکه ، دغه نوي مشر ته يې د خپل پلار مقام، عزت او منزلت ور وسپاره. څرنګه ، چې دی یو خودخواه، خود غرضه او بې واکه سړی و؛ نو د خپلې بې کفایتۍ او بدې رویې له امله دیوې لنډې مودې د تېرېدو نه وروسته د خپل مقام (سردارۍ او مشرۍ) څخه لرې کړای شو او پر ځای يې د هغه ورور سردار پاینده خان په مشرۍ وټاکل شو . دا ډېر پوه او هوښیاره سړی و او د تیمور شاه سره يې ښې مرستې وکړې او کولې يې ، دا چې دده ورور سردار رحیم داد خان يې ولې لرې کړ ؟ د هغه د بې اعتمادۍ او بې اعتبارۍ علتونه ډېر دي، چې مورږ د مثال د پاره دې لاندې پېښې ته اشاره کوو:

" سردار رحیم داد خان په خپله د پادشاه په مخ کې له شوخۍ او سپکوالي څخه کار اخیست ، بل دا، چې د دې داسې یو بې کفایته شوخ او سپین سترګي سړي په رتبه او منصب باندې د نورو درباریانو سره رخه او کینه پیدا شوه ، که څه هم دارنګه خبرې د هغه وخت د درباریانو تر منځ یوه کوچنۍ خبره وه دا، ځکه ، چې د یوه لوړوالی د بل د پاره تکلیف و، هر یوه

غوښته چې خپل ځان ، ځای او ثروت د مقام د نفوذ او زور په وجه لوړ کړي ، په هر صورت دا سردار د خپلې بې کفایتی له امله ګوښه کړی شو[۱]."

د پورته ټکي د اثبات د پاره د قاضي فیض الله خان پټ تحریك او بلوا د سردار رحیم داد خان په مقابل کې زمونږ له پاره پوره باوري دلیل دی. قاضي غوښتل ، چې د ببلو ببلو قامونو مشران په خپل منځ کې سره واچوي ده په دې پټ تحریك سره دا هیله درلودله ، چې د درانیو سردارانو په لرې کېدو سره به زما مقام لوړ او اوچت شي[۲] قاضي ، چې په ختهه او اصل پښتون نه و غوښته یې ، چې پښتانه په خپلو منځو کې سره بې اتفاقه،واچوي ، څو، چې په دې ډول سره کمزوري او خوارشي ، د قاضي دغه پټ تحریك و ، چې د سردار رحیم داد خان غونډې هوښیار سړی هم تیمور شاه له مشرۍ نه لرې کړي او پر ځای یې د هغه ورور سردار پاینده خان په مشرۍ وګوماره ، ددغې دورې تاریخ لیکونکي او تاریخ پوهان وایي ، چې د سردار

[۱] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمور شاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۸۲ مخ

[۲] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمور شاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۸۳ مخ

پاینده خان منځ ته راتګ هم پوازې او پوازې دده په شخصي لياقت، پوهه اوکړو وړو پورې تړلی و دی نه یوازې دا، چې تیمور شاه ته ګران و،بلکې په قام او خپله ټولنه کې یې ډېر ملګري او پلویان پیدا کړي وو ، له ټولو نه يې غوره دا، چې ده د عبدالخالق خان په پېښه کې د خپل ځان ځخه ډېر پوخ تدبیر د هغه د شنډولو د پاره څرګند کړی و [1] دا دده تدبیر او پوخ کار و، چې د عبدالخالق بلوا ( وروسته به په خپل ځای کې راوړل شي ) ختمه شوه ، په دې ډول ددې نامي سردار سره د تیمور شاه ډیره مینه پیدا شوې وه ؛ نو تیمور شاه هم لوړ مقام هغه ته ورکړی و.

---

[1] اداور الایسس پیرس . (د پژولک او صدقی ژباړه ) عروج بارکزای ها. ۷ مخ

## تیمور شاه او سردار جان خان پوپلزی :

تیمور شاه د خپل سلطنت په وخت او زمانه کې د کورني سیاست د ټینګولو له پاره د سلیمان په څېر د غټو او لویو قامي سردارانو څخه په وېره او ډارکې و له همدې کبله یې هغه یویو له کندهار څخه د خپل حکومت مرکز ته راوبلل ، څو، چې وکولای شي د هغوی له وېرې پرته د سلطنت واګې ټینګې کړي د قام له منځ نه د مشرانو رابلل او ویستل ددې مقصد د پاره وو، چې په مشرانو قام راټول نه شي ، په دې ډول ده غټ مشران له ځان سره نږدې په مرکز او پایتخت کې ساتل اوله خپل کور ، کلي او قام نه یې کوښې او څنګ ته کړل، ده مشرانو ته د خپل پلار په شان ډېره تنخوا ورکوله ددې سره سره له بله پلوه تیمور شاه د خپل وخت ډېر لوی او غټ مشران او سرداران د فیض الله خان په تحریك ، چې د تیمور شاه په دربار کې د غټ اعتبار او منصب څښتن و په ډول ډول پلمو خوار او کمزوري کړل ، د ساري په ډول د دوی له جملې او ډلې نه یو سردار جانخان پوپلزی د حلیم خان زوی و، چې د مشهد د معاملو د ختمولو او د احمد شاه بابا مرګ نه وروسته له سکندر خان سره پېښور ته لېږل شوی و، کله ، چې تیمور شاه د تخت کېناستو نه لږه موده وروسته څه آرام او ځای په ځای شو

سردار جان خان سپه سالار او دده زوی سکندر خان یې د دوو بېلو بېلو فرمانونو په واسطه مرکز ته را وغوښتل ، دوی دواړه د فرمانونو د رسېدلو نه وروسته په ډېره بیړه سره کابل ته راغلل. د دوی د راتګ علت د وزیر شاولي خان د مرګ لـه امله خپګان او ملاتړ ګڼل شوی دی. کله ، چې را ورسېدل، له دې ځای نه زر تر زره کندهار ته ولېږل شول. په لومړي سر کې دواړه ښه و نازول شول ، خو د څو ورځوله تم کېدو او تېرېدو نه وروسته سردار جانخان او د هغه ورور زمانخان د قاضي فیض الله خان په شیطانت ،چې یو غیر پښتون درباري و،دواړه د تیمور شاه لـه خوا څخه بندیان شول ، قاضي فیض الله خان په ډېره ځیرکتیا سره تیمور شاه په دې پوه کړی و،چې دوی په قام کې غټ نوم لري او بل دا، چې د وزیر شاولي خان په مرګ هم خپه او خواشیني دی ؛ نو یې بندي کول ضروري کار دی. د فیض الله خان خبره تیمور شاه په ډاګ نه غورځوله څه به یې ، چې ورته ویل ، هغه منل کېدل د دوی دواړو د بندي کیدلو علت همدا وو،خو په تېره د قاضي فیض الله خان او دده د ملګرو تحریك ، چې په دربار کې یې د مشرانو د ځپلو د پاره پیل کړی و مړه اور ته یې بېوزی واهه، ددوی په دې کار سره یې دا ځل بېر ته هغه پخوانی بلوا. چې د وزیر شاولي خان د مرګ لـه امله د قام

د مشرانو تر منځ پیدا شوې وه ، د تیمور شاه غوږو ته ورسوله ، که څه هم سردار جان خان هیڅ ګناه نه درلودله او د تیمور شاه سره یې زیات اخلاص او مینه درلودله [۱]

فیض الله خان نه غوښتل ، چې پښتانه دې آرام وي ؛ نو دده په تحریك سره په ۱۱۹۱ قمري کال کې سردار جانخان د پښتنو میړنی اتل په دل آرام کې د مخالفینو له خوا مسموم شو او ددې مسمومیت په اثر یې د فاني نړۍ نه د ابد د پاره سترګې پټې کړې . دا په ډاګه جوته شوه ، چې د فیض الله خان په پټو تحریکونو سره تیمور شاه ډېر زړور او توریالي پښتانه مشران له لاسه ورکړل او هم یې دده د تحریك له مخې په خپل منځ کې سره واچول ، چې په دوی کې یې لوی درز او بېلتون را پیدا کړ .

## تیمور شاه او برخوردار خان:

دا میړنی افغان پښتون د هغو خانانو په ډله کې و. کوم چې ، د تیمور شاه د سلطنت او په تخت باندې د کښناستونه د مخه د شهزاده سلیمان په ملاتړ د وزیر شاولي خان سره ولاړ وو . برخوردار خان د لوی احمد شاه بابا په زمانه کې د لښکر په تنظیم او ترتیب ګومارل شوی و او دده له غوره ملګرو څخه ګڼل

---

[۱] پوپلزی عزیزالدین . دراني تیمور شاه ۱۳۳۰ کال . ۵٦ - ۵۷ مخونه

کېده، کله ، چې د احمد شاه بابا له مرګ نه څه موده وروسته تیمور شاه په تخت باندې کیناست ؛ نو د هغه مخالفین په تېره شاولي خان او دده ملاتړ ملګري ، چې په خپل هدف او مقصد کې بریالي نه شول ، ډېر خواشیني شول . بر خوردار خان له هغه وخت څخه له تیمور شاه نه ډارېده او تل وېره ورسره مله وه.دی پوهېده ، چې تیمور شاه په هر رنګ او وجه سره ، چې کېږي ماله منځه وړي او دی د تیمور شاه کړوته متوجه وو او غوښته یې ، چې په مناسب وخت کې هغه ته د ځان د عفوې په برخه کې څه عرض وړاندې کړي دا، ځکه دی په دې هم پوه و، چې تیمور شاه د نرم زړه څښتن دی. کله یې ، چې چاته د زړه سوي او ترحم کولو مخ ور واوړي ؛ نو بې له درنګ څخه یې پخوانۍ رخې له زړه څخه ووزي او سړی بخښي. برخوردار خان یوه ورځ د ځان د خلاصون د پاره داسې چاره او تدبیر وسنجولو [۱] ، چې تیمور

[۱] د برخوردار خان دبښنې او عفوې بیان او کینه د مجمل التواریخ په ۱۱۴ مخ کې په ډېر تفصیل او ښه شان سره راغلې ده : وایي،چې د تیمور شاه د تخت له کېناستو نه وروسته برخوردار خان د احمد شاه بابا قبر ته ورغی، د ځان سره یې یو پړی وړی و. د پړي یو سر یې په غاړه کې اچولی و او د پړي بل سر یې د احمد شاه بابا د قبر (مړستون) پر مېخ (موګي) تړلی و څه وخت ، چې تیمور شاه د پلار زیارت کولو ته مقبرې ته راننوت. کوري . چې برخوردار خان پړی په غاړه د لحد څنګ ته ناست دی، په دې شېبه کې کله. چې د تیمورشاه پر هغه سترګې ولګېدې اودده دا حال یې

د تیمور شاه په زمانه کې دغه ارته لویه سیمه ، چې د افغانانو ګډ کور دی په هماغه بڼه پاتې شوه او کوم ارتوالی یې ونه کړ. د دراني تیمور شاه تدبیر او اراده دا وه ، چې دغه نیول شوي ملکونه او افغانستان طبیعی سرحدونه تر خپلې وسې پورې وساتي، د تیمور شاه د ارادې علتونه،چې ولې یې د خپل پلار ( لوی احمد شاه بابا ) په شان څه پرمختګ ونه کړ په دې څېړنه کې به ، چې دده د زماني او وخت د پاره په نظر کې نیول شوې ده ، جوت کړای شي.

## د تیمور شاه لنډه پېژندګلوي :

الف : د پادشاهۍ د تاکل کیدونه دمخه (د وړوکوالي- ځوانۍ) وخت :

شهزاده تیمور شاه د اعلیحضرت احمد شاه بابا دویم زوی او په (۱۱۰۰هـ ) کال کې پیدا شوی دی [۱] دده د پیدا کیدو او زېږیدو ځای د ایران ما زنداران په اتفاق ښودل شوی دی.

څه وخت‌چې احمد خان ( لوی احمد شاه بابا(رح) ) د نادر شاه افشار له خوا څخه د مازنداران په ماموریت وګومارل شو د خپلې کډې او خپلخانې نه پرته د ابدالیو د قام څلور زره تکړه سواره هم له ده سره مله او ملګري وو په دې ځای کې د احمد خان ماموریت اوږد شو اوپه (۱۱۰۰ هـ ق - ۱۷۴۲) کال کې

---

[۱] شهزاده ، بالاحصار و پیش آمدهای تاریخی ، دوهم توک لسم مخ

شاه له حده زیات ورباندې مهربانه شو او د هغه تېر کړه يې هېر او خورا لوربېنه يې پرې وکړه ، په دې کار او تدبير سره د تيمور شاه په نږدې ملاتړ ملګرو کې حساب شو.

## تېمور شاه او د عبدالخالق خان را پورته کېدل:

د تيمور شاه د پادشاه کېدو د بيان په وخت کې مو د مخه دا ټکی ياد شو، چې درانيو د عبدالخالق د ملاتړ او د هغه د پادشاه کېدو دپاره ليچې پورته کړې ، خو دا پښنه زر تر زره د حاجي جمال خان زوی سردار پاينده خان له خوا د تيمور شاه په ګټه شنډه شوه :

د ۱۷۷۴ او ۱۷۷۵ کالو ترمنځ يو کلك اړودوړ د تيمور شاه د پادشاهی د ړنګېدو د پاره پېښ شو، چې مشر يې عبدالخالق و [1] دې نامي سردار او مشر په دې لنډ وخت کې د شکار پور دزمکو د ماليې اجاره په شپږو لکو روپيو په غاړه اخيستې وه. د ماليې د راټولولو د پاره تيمور شاه شيخ عبدالطيف خان د ماليې وزير هغه ته ور ولېږه ، چې دزمکو ماليه ور څخه واخلي او د دولت خزانې ته يې واچوي. کله، چې

---

→

وليد هغه هم دوخت نه په استفادې سره سمدستي د عفوې اوبخښنې عرض وړاندې کړ، تيمور شاه ، چې په زړه کې ډېر نرم او هم د پاک زړه خاوند وُ ، دواره يې په دې کار سره د هغه تېر ګناهونه له زړه وويستل او د خپل ځان سره يې شاهې مقام ته بوت ..:

[1] قاضی عطاوالله خان، د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۱۴۱ مخ

د مالیې وزیر ور ورسېد له هغه یې د مالیې د ټولېدو غوښتنه وکړه، خو عبدالخالق خان د مالیې وزیر ته په ځواب کې وویل: " خوارې مه کوه تر اوسه پورې زر نه دي راټول شوي ". د مالیې وزیر بیا بیا د مالیې د غوښتنې تاکید او ټینګار وکړ او څو تنه یې هغه ته ورولېږل او ورته ویلي یې و ، چې عبدالخالق خان ته وواياست ، چې د مالیې ورکړه ضرور ده. ورلېږل شویو کسانو د عبدالخالق خان په حضور کې د مالیې د وزیر خبرې هغه ته واورولې، خو عبدالخالق خان هغو ته وویل: " مالیه نشته ، زما ځواب په دې برخه کې منفي او نه دی ".

عبدالخالق خان پوهېده ، چې د مالیې وزیر به زما په دې کار زما له خوا څخه پادشاه ته شکایت وکړي؛ نو یې د ځان د ساتنې د پاره د شکارپورزمکه د پادشاه د ډار او وېرې له کبله پرېښود له او کندهار ته ، چې د درانیو مرکزو راغی، تیمور شاه هم ددې یاغي او سرکښ سړي د ټکولو له پاره څو تنه وګومارل چې هغه پیدا کړي ، څنګه ، چې ده خپل ځان ډېر ساته؛ نو هغو پیدا نه کړای شو، عبدالخالق خان په ډېره بیړه او تلوار سره پر لاره تېر شوی او د کندهار مرکز ته رسېدلی و ؛ نو ځکه د تیمور شاه ګومارل شویو کسانو پیدا نه کړ[1].

---

[1] پوپلزی عزیزالدین، درانی تیمور شاه، ۱۳۳۳ کال، ٦٥ مخ

عبدالخالق خان ، چې د احمدشاه بابا تره او مشر سړی و کله ، چې کندهار ته را ورسېد؛ نو په کندهار کې یې د درانیو په یوه لویه جرګه او غونډه کې مشرانو ته د تیمور شاه له خوا زیات شکایت وکړ او داسې یې وویل : " تیمور شاه درانیوته په ښه او درانده نظر نه ګوري ، په دربار کې یې پښتانه دېر لږ دي او د هغوی پر ځای یې دربار د نورو پستو (نرمو) ژبیو څخه ډك دی او هغه نازولي ، دا نازولي، چې په ختمه پښتانه نه دي په هغو باندې پښتانه په خپل منځ کې سره وهي" په دې شېبه کې هغه مشران ، چې د وزیر شاولي خان په مرګ د تیمور شاه څخه زیات خواشیني او مرور وو، د عبدالخالق خان شکایت او خبرو ته یې په ټینګه غوږ ونیو[1] او د هغه سره یې ګډه پرېکړه د تیمور شاه د غورځولو او ټکولو د پاره وکړه. د عبدالخالق خان د خبرو نه وروسته د هغه د ملاتړ ملګرو او مشرانو له خوا څخه دی د تیمور شاه پر ځای د سلطنت او د پادشاهۍ د مقام او تخت کیناستو د پاره په ګوته او وګومارل شو، چې موږ ټول به ددې ګډ هدف د لاس ته راوړو د پاره درسره یو ځای ولاړ وو .تردې پرېکړې وروسته مشرانو هغه ته پنځه ویشت زره (۲۵۰۰۰) عسکري لښکر، چې د قومي او ولسي

[1] درانی سلطان محمد، سلطاني تاریخ، ۱۲۹۸ بمبي ، ۱۵۰ مخ

خلکو نه جوړ شوی و په واك کې ورکړ او د کابل د نیولو په نیت
او د تیمور شاه د پادشاهۍ د ړنګولو په خیال په ډېر غورځنګ
سره له کندهار څخه مخ په کابل را روان شو او د جنګ
د پاره یې لازم او منظم ترتیب ونیو. دراني تیمورشاه ، چې د
عبدالخالق خان او د هغه د ملاتړ مشرانو له دې کلك اقدام نه
د کابل په لور خبر اواګاه شوی و، خوراخوا بدی، پرېشان او
خپه و؛ نو ده د ځان د ساتنې او سلطنت د پاېښت او دوام د پاره
دکابل، جلاآباد او پېښور شاو خوا امیرانو او مشرانو ته
دمرستې او کومك پیغامونه ور ولیږل ، چې ددې بلوا د
ختمېدو د پاره ورسره ملګري شي، خو د دوی له خوا کوم
مثبت ځواب هغه ته ورنه کړ شو. دی ، چې د خپلو پیغامونو
د استول شویو سیمو نه نا امید شو؛ نو یې بله چاره پرته له
دې څخه ونه لیدله او سمدلاسه یې دلاورخان د بلخ له ولایت نه
کابل ته راوغوښت او دا ددې له پاره ، چې په تنګ او لنډ
وخت کې له هغه سره مرسته وکړي.

په دې حساس، لنډاو تنګ وخت کې، چې عبدالخالق
خان د کندهار له خوانه د کابل لوري ته د کابل د نیولو د پاره
راروان و، د کابل د سیمې مشران او منصبداران هم د
تیمورشاه د امر نه تقریب په ډېره او واوښتل او په جلا جلا ډول

يې د دفاع او مخ نيوي پيشنهادونه وړاندې کړل. د تيمورشاه مور، چې په دې لنډ وخت کې دا بد حال وليد(۱) او د هغه ماتې خامخا ورته ضرور ابسېدله؛ نو بې له درنګ نه عبدالله خان ديوان بيګي ته ورغله او په خپل لاس يې د تيمور شاه او دده لاسونه سره ورکړل او ورته ويې ويل: "بناغليه ديوان بيګي صاحبه! ما نن ورځ د شاه دراني زوی په تا سپارلی دی". په دې شېبه کې که څه هم ديوان بيګي د هغې خبرې ته سم پام ونه کړ. دا ځکه د هغه زوی د عبدالخالق په ډله کې شامل او د هغه د ملاتړ ملګرو څخه و، خو دغه دليل تر ډېرې پورې سم نه دی. کوم علت، چې مؤرخين غوره ګڼي هغه دادی: له يوې خوا تيمورشاه د وزير شاولي خان د وژلو له امله هغه ته خپل اهميت بايللی و. دا ځکه ده داسې فکر نه کاوه، چې زما په ملاتړ سره، چې وزير شاولي خان هغه ته وسپارل شو؛ نو به يې سمدلاسه مړ کړي. دې کوچني کار تيمورشاه ديوان بيګی ته وورا و کوچنی کړی و. له بلې خوا د مرکز (پايتخت) بدلولو او د پارس دود او دستور خوښولو بنې او ځينو نورو نيمګړتياوو ديوان بيګي له تيمورشاه څخه اړولی و؛ نو ځکه يې د هغه د مور خبرو ته څه توجه ونه کړه.

کله، چې تیمور شاه ټولې لارې پر مخ ترلې ولیدلې؛ نو خو را ناامید او خپه شو دی د خپل تدبیر په سنجولو کې و او نابېره ، چې ډېرې غصې او قهر نیولی و په تر یو تندي یې سمدلاسه خپل زر تنه تنخوا خواره سپاهیان ، چې ده په خپل وخت کې نیولي وو د جعفر خان چندولي تر مشرۍ لاندې د غزني په لور د عبدالخالق د ماتې د پاره ولېږل، ددغو عسکرو له لېږلو وروسته دی د شپږو زرو تنو سره روان شو او د شش ګاو په برخه کې یې د عبدالخالق د مخ نیوي او مقابلې لارو نیوله. کله ، چې د دواړو دښمنو او مخالفو ډلو د مخامخ کېدو په وخت کې د عبدالخالق خان د لښکر نه دوه تنه مشران محراب خان او دلاور خان له هغه نه جلا او بې له کومې ګټې او د دوستۍ په خاطر د تیمور شاه سره ودرېدل او هغو له ځان سره یوه ډله ملګري هم بېل کړل [1] په دې کار سره د تیمو شاه مټ کلك او د عبدالخالق مټ کمزوری شو. تیمورشاه ، چې عبدالخالق او د هغه نورو نږدې مشرانو ته ډیر قهر نیولی و د عبدالخالق د لارې د بندولو په غرض یې، چې د کابل په لور مخ په وړاندې

[1] درانی سلطان محمد، سلطاني تاریخ، ۱۵۰ مخ

رانه شي، څلور سوه قلماقي غلامان په لار کې گومارلي وو او هغوی ته يې د دښمنې ډلې د ځپلو لازم هدايتونه ورکړي و، د دښمنو ډلو ترمنځ په شش گاو کې د مخامخ کېدوله امله جنگ په ډېر قوت سره پيل شو .څنگه ، چې د تيمور شاه لښکر په درنده او قوي شاهي باجې خانې او درندو توپونو باندې سنبال و[1] د جنگ او نښتې په وخت کې بری او فتحه په برخه شوه .د کندهار لښکر ، چې ډېره وسله نه درلودله او په منظم ډول سره يې جنگ نه شو کولای د جنگ په وخت کې دوه زره تنه مړه او عبدالخالق هم د تيمور شاه د لښکر لاس ته ورغی[2] په دې جنگ کې مدد خان او سردار پاينده خان د تيمور شاه په گټه او ملاتړ ډېره کلکه ميړانه وکړه .دا د دوی ميړانه وه ، چې تيمور شاه بری ومونډ او پاينده خان په خپله ځيرکتيا سره د عبدالخالق خان ډېر زيات پاخه ملگري د جنگ په وخت کې د تيمور شاه په خوا راواړول.همدارنگه مدد خان ، چې يو پوه او زړور جگړن و په جنگ کې يې کلکه توره وکړه.

---

[1] قاضی عطاوالله خان، د پښتنو تاريخ، ۱۴۲ مخ

[2] پوپلزی عزيزالدين، درانی تيمور شاه . ۱۳۳۳ کال، ٦۹ مخ

د تیمورشاه په وخت کې دا بې ساري اړودوړ ، چې د عبدالخالق په مشرۍ پيل شوی و، دده په نيولو او ماتې سره ختم شو .څنګه ، چې عبدالخالق خان مشر او سپين ږيری سړی و؛ نو د نيولو په وخت کې يې د مرګ نه د خلاصون له پاره فکر کړی و، ده د هوښياری نه کار واخيست .کله ، چې تيمورشاه ته راوستل شو؛ نو بې له درنګ نه يې د هغه د وژلو امر صادر کړ ، خو هغه داسې ورته وويل :" آيا ته شرم نه لرې، چې ما ستاد پلار سره په يوه ګډه لوښي کې هميشه ډوډۍ خوړله او هغه به زما احترام کاوه .دا ځکه زه د هغه تره وم ." [1] تيمورشاه، چې د نرم خوی او تنکي زړه څښتن و دهغه د وژلو نه تېر شو او د ځان سره يې وساته، خو ددې سره سره يې هغه په سترګو ړوند کړ، په دې ډول د عبدالخالق دا سخته بلوا د تيمورشاه په مقابل کې ختمه شوه.

---

[1] پوپلزی عزيزالدين، درانی تيمورشاه، ۱۳۳۳ کال ، مخ ۷۱ .

## تېمور شاه او د فیض الله خان خلیل بغاوت:

په ۱۷۷۹ کال کې د خلیلو مشر فیض الله خان ، د څکمنیو صاحب زاده او د برو مومندو مشر ارسلاخان د تیمور شاه د وژلو او د شهزاده سکندر شاه د پادشاه کېدو د پاره، چې د احمدشاه بابا شپږم زوی و ، په ګډه دا پرېکړه وکړه ، چې په هره وجه کيږي[1] دوی به دا عمل او خپل جوړ شوی پلان تر سره کوي ، ولو که د دوی په وژلو هم تمام شي.

په دغه وخت کې تیمورشاه د پېښور په بالاحصار کې په خپله شاهي کلا کې استوګنه درلودله او د پنجاب د حملې او برید په باره کې يې د خپلو مشرانو او مخورو سره سلا مشوره او فکر کاوه[2].

فیض الله خان ، چې د پېښور دزمکوالو ، مشرانو او غټانو رئیس و، د تیمور شاه د وژلو پرېکړه او پلان يې بیا د تیمورشاه له یوه نږدې دوست خواجه سرای یاقوت خان سره نوی کړ[3]. خواجه یاقوت ، چې د تیمورشاه د حرم او دده د سرای د ساتلو مشر و او په دې پرېکړه يې خوله پټه کړه او چاته يې څه ونه ویل.

---

[1] قاضی عطاوالله خان، د پښتنو تاریخ ، لومړی ټوک، ۱۴۲ مخ.

[2] کاکاخیل ظفر، پښتانه د تاریخ په رڼا کې ، ۸۸۹ مخ.

[3] عزیزالدین پوپلزی، درانی تیمور شاه ۱۳۳۳ کال، ۸۵ مخ.

فیض الله خان د خپل پلان د عملي کولو د پاره له خپل ملاتړ ملګرو سره په اول کې د مکر او حیلې څخه کار واخیست او د دوستۍ په جامه کې یې له چل نه کار واخیست. د تیمورشاه حضور ته راغی او کله، چې دی هلته د خپلو ملاتړو کسانو سره ورسېد؛ نو داسې یې وویل: " مونږ د پادشاه حضور ته دا ډول عرض لرو: د پنجاب سېکانو د مسلمانانو په ضد او د هغوی د ماتولو د پاره بلوا او اړودوړ را پورته کړی دی اما ستاسو امیران او منصبداران ډېر ورڅخه تنګ شوي دي، که د پادشاه اجازه او امر وي زه به د خلیلو، مومندو او ځینو نورو خلکو په راټولولو د هغوی کرارولو او ځپلو ته ورودانګم. تیمورشاه دده عرض منظور او هغه یې ومانه [1] ".

فیض الله خان خلیل. چې مخکې له مخکې د تیمور شاه د وژلو اوله سلطنت نه د غورځولو نیت او قصد کړی و د خپل مرام او مطلب د ترسره کېدو نه وروسته د پنځه ویشت زره لښکر سره د فرصت او وخت په انتظار کېناست. او دې ته سترګې په لار و، چې کله به خپل هوډ ترسره کړي. فیض الله خان یوه ورځ د غرمې د ډوډۍ له خوړلو څخه وروسته د غرمې د خوب په نیت چې ویده شي د پېښور بالاحصار ته ولاړ، ددې

[1] عزیزالدین پوپلزی، درانی تیمور شاه، ۱۳۳۳ کال، ۸۵ مخ

یې همدلته شهزاده تیمور پیدا شو[۱] احمد خان چې د مازندران د ماموریت له پاره د نادرشاه افشار له خوا ټاکل شوی و؛ نو دده دغه ماموریت په دې ځای کې تر ۱۱۶۰ کال پورې دوام وموند ددې پورته یادونې او نظر په خلاف ظفر کاکا خیل په خپل کتاب ( پښتانه د تاریخ په رڼا ) کې لیکي ، چې شهزاده تیمور شاه په (۱۷۴۶ع ) کال کې په مشهد کې پیدا شوی دی. په دې ترتیب دده د زیږیدو په باب د مؤرخینو تر منځ د نظر اختلاف لیدل کیږي.

د احمد خان ددغه ماموریت په وخت کې کله ، چې د مشهد په فتح آباد کې د ایران د سردارانو په سلا او مشوره نادر شاه افشار د جمادي الآخر د میاشتې په یوولسمه د یکشنبې د شپې په نیمه نیمایي ( پخه شپه ) کې ووژل شو. احمد خان تر لنډې جګړې وروسته چې د ایران له مشرانو سره یې وکړه د مشهد له فتح آباد نه کندهار ته د خپلې کډې ، ماشومانو او ملګرو سره را روان شو احمد خان په دې پېښه کې د نادر شاه افشار د حرم ساتنه د پښتني پت له مخې په ډېره کلکه میړانه سره وکړه. د نادر شاه میرمنې د احمد خان ددې لوی خدمت په بدل کې هغه ته د کوه نور قیمتي الماس ، چې

---

[۱] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمور شاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۱۷ مخ.

په ځای،چې ویده شي د سلطاني تاریخ په قول [۱] دا وخت یې له بل هر وخت نه ښه غنیمت وګاڼه او ملاتړ ملګري او خانان یې د خپل ټول را غونډ شوي لښکر سره ، چې شلو زرو تنو ته رسېده او د مخه یې مشوره او پرېکړه کړې وه د تیمورشاه د کتنې او لیدنې په پلمه د هغه پر حصار او ماڼۍ وردننه شول. د کلا پیره دارانو او ساتونکو زیات مقاومت وکړ او ورته وی ویل : " بې له مشرانو باید ټول ولاړ نه شئ ". د پیره دارانو مقاومت او ټینګار په بهانه ، چې فیض الله خان خپل لښکر پوه کړی و . په پوره بېرحمۍ او بې له زړه سوي څخه د هغوی په وژلو برید او لاس پورې کړ، په دې شیبه کې یوشمېر پیره داران او ساتونکي ووژل شول. څه وخت ، چې تیمورشاه د خپلو پیره دارانو سوې نارې ، چغې او بدحال ولیدل،نو ذ حصار لوړ برخ (برج) ته و خوت او خپل خاص او مخصوص ګارډ ته ( دده د مخصوص ګارد یادونه د مخه راغلې ده ، هغه خپل ساتونکی ګارډ اسحق زیو نه جوړکړی و.ده په هغو باور درلود ، چې په ډېر مشکل او سخت وخت کې به مې په کار شي ؛ نو یې د قام بې قاعدې لښکر، چې د درانیو او نورو پښتنو قومونو نه جوړ شوی و له منځه لرې کړ او پر ځای یې تنخوا خواره عسکر ، د تاجکو

---

۱ درانی سلطان محمد. سلطانی تاریخ. ۱۵۳ مخ

او اسحق زیونه د عسکرو په بڼه سنبال کړ) اشاره وکړه او هغوی ته یې وویل ، چې ارګ ته د مقابلې او تورې د پاره ورننوزئ. شاهي عسکرو، چې د مقابل لوري حیله ګر لښکر ولید د خپلې وسلې او ځان د ساتنې په غرض یې داسې سخت برید پرې وکړ ، چې په یوه درنګ یې د خپلې درندې شاهي وسلې په قوت له کلا نه ورشنې (بېدیا) ته وویستل. دوی هغوی ته موقع ورنه کړه او په خورا مېړانه، توره او وژلو سره یې دفیض الله خان اود هغه د ملاتړ ملګرو ولسي لښکر په ماتولو باندې یې له ډېره قهره خپله خوا یخه کړه. ددوی په پرلپسې وړاندې تګ سره په ولسي لښکر کې ماتې ګډه شوه. په دې سخت اړودوړ او چپاوکې فیض الله خان او د هغه زوی ونیول شول. دوی دواړه له ډېر کړاو او عذاب تېرولو نه وروسته ووژل شول. ارسلاخان ، چې د فیض الله خان سره ملګری و او په دې پېښه کې یې لوی لاس درلود له دغه ځای څخه وتښتېد. د څکمنیو صاحب زاده ، چې یو روحاني او مذهبي سړی و د قام د نفوذ او په هغه باندې د زړه د بدېدو له امله د مرګ نه بچ کړای شو. په دې ډول سره د دغو دریو تنو پټه پرېکړه ، چې د تیمورشاه د مرګ او وژلو د پاره شوې وه ناکامه شوه. دغه درنه پېښه دده د عسکرو په مېړانه او سر ښندنه ، چې دده په اشاره سره د دښمن په مقابل کې ودرېدل بیخي شنډه کړای شو.

## د ارسلاخان تېښته :

ارسلاخان ، چې سلطاني تاریخ د اسدالله په نوم یاد کړی دی . د لوی احمد شاه بابا په وخت کې د سرهند په صوبه دارۍ[۱] مقرر او احمدشاه بابا ته ډېر ګران و .له بده مرغه په دې وخت کې یې د خلیل (فیض الله خان) سره د ډېرې ګټې په خاطر د تیمورشاه مرګ ته ملا وتړله . کله ، چې ده او فیض الله خان په خپل جوړ شوي پلان کې د تیمورشاه له خوا ماتې وخوړه ؛ نو فیض الله خان د مرګ په لیدلو سره دی وتښتېد او ځان یې اتمانخېلو ته ورساوه[۲] .کله، چې ارسلاخان د اتمانخېلو لومړي کلي ته نږدې ورسېد ، د کلي مشران د خبرو د پاره د هغه سره د کلي نه بېدیا ته ووتل او هغه ته یې وویل :" تا موږ په خپل کلي کې پرېښودلی اوساتلی نه شو . دا ، ځکه، چې موږ د پادشاه سره د مقابلې او جګړې توان نه لرو ، هغه زمونږ پادشاه دی. څه وخت، چې ته زمونږ کلي او سیمې ته ننوزې او شپه تېره کړې : نو مونږ خامخا ستا د ساتنې په باب پښتني دود او پښتونواله تر سره کوو او په ننګه دې درېږو. ارسلاخان د دوی سره د یو لړ خبرو کولو نه وروسته په یو چل خپله کډه د خپلو

---

۱ عزیزالدین پوپلزی، درانی تیمور شاه، ۱۳۳۳ کال، ۱۰۷ مخ

۲ قاضی عطاوالله خان، د پښتنو تاریخ ، لومړی ټوک، ۱۴۳ مخ

ملګرو په لاس کلي ته وردننه کړه او د هغه چل داو : ده په ډېر مهارت سره د کلي مشران په خبرو کړل او ملګرو ته يې لاپخوا ويلي وو،چې زه به د دوی سره خبرې کوم او په دې وخت کې به سمدستي تاسې کلي ته زما د کډې سره ننوزئ. کله ، چې د کلي مشران د کډې په ننوتلو باندې کلي ته خبر شول ؛ نو يې ورته وويل اوس د خبرو ضرورت پاتې نه شو. هرڅه سم شول، دی يې په تود هرکلي سره خپل کلي او جومات ته بوتلو او داسې يې ورته وويل : "ته اوس زمونږ میلمه يې او مونږ د تاپه ساتنه مجبور يو" [۱]

په دې ډول تیمورشاه د ارسلاخان د پیدا کېدو او نیولو نه ناامید شو؛ نو د دې چل نه يې د هغه د لاس ته راوړلو دپاره کار واخيست . دده چل داو چې ده په خپلو مجلسو کې ويل :" ما اوس ارسلاخان بخښلی دی". دده دا خبره ورو ورو په ولس او خلکو کې تیت او خوره شوه . هغو يقين وکړ، چې په رښتیا سره تیمورشاه د نرم زړه څښتن دی ، مګر څه موده لاتېره نه وه ، چې قاضي فيض الله خان تیمورشاه پوه کړ او هغه ته يې وويل : په هره وجه سره ، چې کېږي ارسلاخان زه ستا حضور ته حاضروم. قاضي فيض الله خان، چې پښتانه يې په کراره نه پرېښودل ارسلا خان

---

[۱] کاکاخېل ظفر. پښتانه د تاريخ په رڼا کې . ۸۹۱-۸۹ مخونه .

ته یې په چل او ذمه واری یو قرآن ور واستاوه ، دبخښنې او خلاصون لیك یې د دې قرآن پر مخ ، چې د شاهي مهر په واسطه سره لیکل شوی وکېښود . په دې توګه سره قاضي فیض الله خان ارسلاخان پېښور ته را حاضر کړ. تیمورشاه په اول کې د قاضي فیض الله خان په شفاعت سره د ارسلاخان د وژلونه ډډه وکړه،[1] مګر د خلکو او قاضي صاحب په چلونو سره د نږدې درباریانو د زیات اسرار او شکایت له امله د هغه خوراکي د وژلو امر صادر کړ، او په حق ورسېد

## تیمور شاه او د آزاد خان بغاوت :

آزاد خان د حاجي کریمداد خان زوی و، دده پلار د علیحضرت احمد شاه بابا له خوا د کشمیر حکمران مقرر شو ، او ددغې وظیفې نه د مخه یې د عرض بیګي وظیفه ترسره کوله کله . چې حاجي کریمداد خان مړ شو ، دده زوی آزادخان تیمور شاه له خوا خپل د پلار پر ځای په کشمیر کې حاکم وټاکل شو[2]

آزادخان په خپل وخت او زمانه کې په سخاوت او مېړانه کې ساری نه درلود . د خپلې حکمرانۍ په وخت کې یې ډېر خلك د خپل نیك خوی او ښه سلوك په اثر د ځان ملګري او

---

[1] کاکاخیل ظفر، پښتانه د تاریخ په رڼا کې ، ۸۹۱ مخ

[2] پوپلزی عزیزالدین. دراني تیمور شاه، ۱۳۳۳ کال . ۱۰۰ مخ

پلویان کړي وو دا شان په خپل مټ او توان لس زره کلك سواره په خپل ځان پسې هم ملاتړ درولي وو. د وخت په تېرېدو سره ده د دووکالونو حکمرانی کولو ځخه وروسته د استقلال اعلان وکړ. په دې شیبه کې دده ورونه د تیمورشاه ملګري او ملاتړ وو. دی يې د پادشاه د یاغي کېدو نه منع کاوه. خو ده د هغو خبره ونه منله سره له دې ، چې د هغوی سلا يې خوښه نه کړه. په دې وجه ، چې د تیمورشاه پلویان وو ، له کشمیر ځخه يې هم وشړل[۱].

ځه وخت چې تیمور شاه د آزادخان له یاغي کېدو نه خبر شو ډېر خوابدی، پرېشان او خپه شو، خو د هغه د بلواد شنډولو د پاره يې په اقدام لاس پورې کړ. په لومړي سر کې يې هغه ته محمد علي خان ، چې په کفایت خان سره مشهور و ، دده د هدایت او نصیحت کولو دپاره ورولیږه[۲]. تیمور شاه په دی وجه سره غوښته ، چې د ازړور او د ښه خوی پښتون بې له کوم زیان او تکلیف د رسېدلو ځخه دې ته اړ کړي ، چې په خپله خوښه له دې کار او عزم نه لاس واخلي،ځو ، چې خبره توري او مرګ ته ونه رسیږي.

---

[۱] درانی سلطان محمد ، سلطاني تاریخ، ۱۵۷ مخ

[۲] هزاره ملا فیض محمد . سراج التواریخ . لومړی ټوک . ۴۱ مخ

کله، چې کفایت خان دپادشاه په امر کشمیرته ورسېد، په ډېره خوږه ژبه اونرمه لهجه یې د تیمورشاه پیغام هغه ته ورساوه او په خندا یې ورته ولوست د کشمیر د مالیې د غوښتنې په برخه کې، چې آزادخان را ټولوله او مصرف کړې وه. د هغې په عوض کې یې له ده څخه دوه درې لکه روپۍ د سفر خرڅ په پلمه وغوښتې. دا شان یې د هغه د حال او استقلال غوښتنې په باره کې تیمورشاه ته یو لیك واستاوه. ددې خط په رسېدو سره تیمورشاه د هغه په حال او کړو، چې دده په مقابل کې پورته شوی و ښه خبر شو او د چارې په لټه کې یې شو[1]. په همدې وخت کې کفایت خان هم کابل ته را ګرزېدلی و. کله‌چې کابل ته را ورسېد تیمور شاه یې د آزادخان له حال او کیفیت څخه خبر کړ.

له دې وروسته تیمور شاه مرتضی خان او زمان خان د آزاد خان ورونه د هغه د ټکولو له پاره د ډېرش زرو (۳۰۰۰۰) لښکرو سره ورواستول. څه وخت، چې دوی کشمیر ته ورسېدل آزادخان هلته نه و او د خپل خسر په کور کې دېره و. په دې وخت کې دی د ورونو له راتګ نه، چې دده پرضد د لښکر سره راغلي وو، خبر شو؛ نو په ډېره میړانه د هغو د جنګ او مقابلې

---

[1] پوپلزی عزیزالدین . درانی تیمورشاه . ۱۰۱ مخ

دپاره مخې ته ور ووت. په لومړۍ نښته کې آزاد خان ماتې ومونده، خو دده د اکا زوی په دې نښته کې په پوره تورې سره د تیمورشاه د لښکر په مقابل کې کلک مقاومت وکړ. دده د مېړانې او بریالۍ حملې له امله په پای کې د تیمورشاه لښکر مات او تیښتې ته اړ شو، خو د ماتې له امله د آزاد خان سره یو ځای د کشمیر لورته په ګډه دننه شول. د تیمورشاه په لښکرو کې یوازې یو تن، چې د سیدانو څخه و تر آخره پورې کلك په مېړانه ودرېد، تردې اندازې پورې مېړانه یې وکړه، چې دده توره او قوت په خپله د آزاد خان هم خوښه شوه او د ماتې نه وروسته یې هغه ته د مېړانې له امله ډېر عزت ورکړ. آزاد خان د تیمورشاه د لښکرو نه درې زره تنه بندیان ونیول او هغوی ته یې وویل: "تاسې ته خپله په دې ټکي واك او اختیار دی، چې کشمیر کې زما ملازمت کوئ او یا بېرته کابل ته ځئ". د دوی له ډلې نه یونیم زر تنه په دې راضي شول، چې بېرته کابل ته ولاړ شي، آزاد خان د دوی له دې نظر یې او رایې نه ناراضه او خوابدی شو او په پټه یې د مظفرآباد ببړۍ چلونکو ته د هغوی د ډوبولو امر صادر کړ.

څه وخت، چې ددې ماتې خبر تیمورشاه ته ورسید سمدستي له کابل نه د پېښور په لور وخوځېد او پېښور ته

د رسېدو سره سم یې سردار مددخان اسحق زی او ځینې نور سرداران د کشمیر خواته ولېږل ، څو ، چې آزاد خان له پښو وغورځوي او له دې سختې پیښې نه په امن شي. څه وخت ، چې د تیمورشاه په امر سردار مدد خان د آزادخان د ماتولو دپاره کشمیر ته ورسېد ، د رسېدلو سره یې سم او بې له درنګ نه په جنګ لاس پورې کړ ، د دواړو دښمنو او مخالفو ډلو ترمنځ څو ورځې پرله پسې سخته نښته وشوه. ډیر ځوانان په کې خاورې شول ، خو یوې خوا ته هم فتحه او بری په نصیب نه شو. سردار مددخان ، چې د تیمور شاه یو پوه نظامي سردار و په ډېره هوښیارۍ او ځیرکتیا سره یې[1] د آزاد خان ځینې سرداران او د لښکر مشران په ځان پسې واړول. کله ، چې آزادخان له دې کار نه خبر شو او په دې هم پوه شو ، چې قوت او قدرت یې په خپل منځ کې کمزوری او ټوټې ټوټې شي ؛ نو بله لار یې ونه لیدله ، د وېرې او ډار له کبله یې په تېښته او فرار لاس پورې کړ. د جنګ په حال کې یې د راجه رستم کور ته ، چې دده خسر و ځان ور ورساوه ، دده د خسر کور او ځای ، چې په وچ بیابان ، سولین او شګلین ډاګ کې آباد شوی و د تیمورشاه د لښکرو په مقابل کې یې د دیوال او سد مثال درلود . دې وچ او سولین

---

(۱) هزاره ملا فیض محمد، سراج التواریخ، لومړی توک ، ۴۲ مخ.

ډاګګ ته ، چې اوبه یې نه درلودلې د ورتلو امکان ډېر لږ او یا هیڅ نه و . سردار مددخان . چې د هغه د تیښتې لار و لیدله او پوه شو ، چې جنګ نه ورسره کېږي ؛ نو د آزادخان خسر ته یې په کلکه ولیکل : که ته ، چېرې خپل زوم یعنې آزادخان موږ ته ونه سپارې او په لاس کې یې را نه کړې ، دده په ګناه به تا له تیغه تیر کړو ، دا ستا د خبرېدو د پاره پیغام و ، خوښه او رضا ستا هره لاره ، چې ته غوره ګڼې هغه به د ځان د پاره خوښه کړې راجه رستم د مددخان له وېرې او د ځان او کورنۍ د ساتنې د پاره آزاد خان د خوب په حال کې ، چې ویده و ، د مددخان سختو او خونخوارو پنجو ته وسپاره . دې نامي او توریالي سردار (آزاد خان) ، چې د خپل خسر حال ولید د مددخان د ور رسېدو سره سم یې په خپله ځان مړ کړ[1] . په دې توګه تیمورشاه د کشمیر له دې کلک قیام نه په امن کې پاتې شو .

---

(۱) څه وخت چې آزداخان د خپل خسر کور ته ولاړ، د ورسېدو سره سم هلته د خپل خسر په ټینګار ټول ملاتړ او وسلوال ملګري ورځینې بېل او دی یوازی دلې پاتې شو دده سره بې له یوې جیبي توپانچې ( تفنګچې ) نوره وسله هم نه وه او تش لاس د خپل خسر په کور کې دیره شو کله ، چې مددخان دده د تیښتې او د خسر کره په دیره کېدو خبر شو؛ نو د هغه خسر ته یې یو لیک ور واستاوه ، د مددخان لیک ، چې د آزادخان خسر ته ورسېد او هغه یې ولید د ډار او وېر له امله یې مددخان ته خبر ورکړ چې زر را درومه آزادخان ستا په اختیار کې دی . مدد خان ددې خبر په اورېدو سره صرفه ونه کړه او د دوه زره لښکر [illegible] د هغه د نیولو او وژلو د پاره

د محمد شاه ګورګانـي لـه خوا ددې میړه ( نادر شاه افشـار) تـه ورکړ شوی و، وروبخښلو[1] شهزاده تیمور په اووه کلنی کې د خپل مېړني پلار او ګرانې مور سره کندهار ته راغی کله چې، د تیمـور پـلار (احمدخـان ) او نـور افغـاني مشـران کندهـار تـه راوګرځېدل سمد لاسه يې د مشر په ټاکلو لاس پورې کړ، نهه (۹) جرګې د مشر او مشری د ټاکلو د پاره وشـوې ، لـه نـهمې جرګې وروسته د ټولو مشرانو په خوښه او په تېره د حاجي جمال خان په پوره پاملرنه احمد خان د افغانستان په پادشاهۍ وټاکل شو او د بخـت سـتوری یـې وځلیـد ، صـابر شـاه ملنـګ د غنمـو وږی د احمد خان په سر کې و ټومبه ، د تیـږې یـو تخت یـې جوړ کړ احمـد شـاه يې پر هغـه کیناوه او ورتـه ويـې ويـل : دا تخت سـتا سلطنت دی او ته پادشاه یې[2] احمد شاه بابا د تیمور د عمر پـه اووه کلنۍ کـې د ګران افغانسـان د سـلطنت واګې پـه لاس کـې واخیست...

شهزادهٔ تیمـور پـه پنځلس کلنی کې د خپـل پـلار ( لـوی احمـد شـاه بابـا) سره د هنـد د نیولـو او یرغلونـو پـه وخـت کـې ملـګری و، او احمـد شـاه بابـا پـه ۱۱۷۰ق کـال کـې د خپلـو فتوحاتو په لړ کې د جمادي الاول د میاشتې په اوومه نیټه ډهلـي

---

(۱) هزاره ملا فیض محمد ، سراج التواریخ، لومړی ټوک ۹ مخ

(۲) کاوون کاکړ حسن، درسي نوټ، ادبیاتو پوهنځی؛ ۱۳۴۶ کال

## د فتح خان یوسفزي یاغي کېدل :

فتح خان یوسفزي د مظفرآباد د ریاست د نیولو وروسته ، کله ، چې شاهي مالیه ټولوونکو د کشمیر د سیمې مالیه راټولوله د هغې د نه ورکولو مخه یې په کلکه سره ونیوله په دې ډول سره دغه خان هم تیمورشاه ته یاغي شو. څه وخت ، چې تیمورشاه دده له یاغي کېدو او سرغړونې نه خبر شو. ډیر په قار شو او د هغه د ټکولو دپاره یې یو تکړه لښکر ولیږه کله ،

ورروان شو کله. چې مددخان هلته ور ورسېد په دې مهال کې آزادخان د خپل خسر په وجره کې و . دا لاڅه . چې رستم خان دارن ټولې دروازې هغه پسې کلکې تړلې وې څه وخت. چې مددخان او دده ملاتړ ملکري هلته ورسېدل ، د رستم کلکې کړې دړې (دروازې) یې یوه په بله پسې آزادخان خوار کې پسې ور خلاصې کړې، آزادخان چې د دوی له راتګ نه اګاه او خبر شو. بله لار یې نه درلوده خپله تپانچه (تمانچه) یې راوخیسته په خپل تټر یې برابره کړه او ځان یې په دې ډول بې له دې . چې دوی مړ کړی وي وواژه . د زلکدم (خنکدن) په وخت کې ، چې وروستی سلګی یې وې مددخان دده و جړې ته راغی د رارسېدو سره سم یې د آزادخان سترګې پرې ولګېدې په نیولي غږ . چې سا یې ډوبنده وه په قار یې ورته وویل : که مې وسله په لاس کې وای ته به مې روغ نه وای پرېښودلی او سر به مې دې وهلی و په دغه شان یې ډېر بد وکانځه ده لا خپلې خبرې تمامې کړې نه وې ، چې مددخان ظالم یې د خنکدن په سلګیو کې ددې تورپالی زمري سر وواهه او تیمورشاه ته یې له خان سره راوړ تیمورشاه . چې دده له یاغي کېدلو ډېر خوایشني او خورمن هم و له دې سره سره یې د هغه میرانه . غیرت ، توره او زړورتوب وستایه او مددخان ته یې په قهر وکتل (په دې باره کې ډېر زیات معلومات او خبرې د دراني تیمورشاه د پوپلزی په تالیف شوي کتاب کې په بوره او مفصل ډول راغلي دي ).

چې د تیمورشاه لښکر د فتح خان سره د مقابلې په وخت کې مخامخ شو؛ نو د مخامخ کېدو او جنګ په وخت کې یې هغه ته کلکه ماتې ورکړه . دا یاغي خان یې بندي د اعلیحضرت تېمورشاه حضور ته لاس تړلی راوست تیمورشاه ، چې ولید سمدستي یې د هغه د غرغرې حکم صادر کړ . په دغه ډول سره تیمورشاه دده له پورته کېدو خلاص او هغه خوارکی ووژل شو او دده د ریاست او څوکۍ پر ځای یې هغه زوی ، چې د تیمورشاه ملاتړ او طرفدارو په کورسۍ باندې کېناوه .

# دوهم فصل

## د تیمور شاه په وخت کې پوځي پېښې (لښکر کشي) :

اعلیحضرت تیمور شاه د خپل سلطنت او حکومت په دوره کې په کورنیو پېښو سربېره پنځه واره هند لوري ته خپلې لښکرې د پلار د امپراتورۍ د سرحدونو د ساتلو د پاره ولېږلې او په یاغي شویو سیمو باندې یې کلك یرغلونه ترسره کړل دده دا حملې او یرغلونه په ترتیب او وار سره په ۱۷۷۴، ۱۷۷۹، ۱۷۸۰، ۱۷۸۵، او ۱۷۸۸ میلادي کلونو کې پېښې او ترسره شول دی په دې کلونو او وخت کې د سیکهانو ځپلو او اېلولو ته متوجه وو. دا شان تیمورشاه د خپلې پادشاهۍ او حکومت په وخت کې درې وارې د غرب په لور، یو ځل د سند او شمال لورې ته خپلې لښکرې او فوځې بریدونه ترسره کړل[1] ددې د پاره، چې دا آهمه موضوع څه روښانه شوې وي، نو په لنډه توګه داسې ورته ځیر کېږو :

د لوی احمدشاه بابا د مرګ نه وروسته څه وخت، چې سیکهان دتیمورشاه د سلطنت په لومړیو وختو کې دده له کورنیو ستونځو او د هغه د عیش او هوسا ژوند نه خبر شول، له دې

---

[1] فلیچر ارنولد، افغانستان، ۵۹ مخ

حال او وضعې نـه يـې دا هيلـه د ځان سره غـوټه کـړه ، چـې د تيمورشاه د کورنيو شخړو نه به موږ اوس د فرصت او وخت په غنيمت سره د ځان د آزادۍ پـه ګټه اسـتفاده وکـړو؛ نـو بـې دا وخت د بل هر وخت نه ډېر زيات ښه وګڼه او ددې موقع نـه په استفاده کولو سره يې پر ملتـان بريدونـه وکړل څه وخت ، چې درانی تیمورشاه د دوی لـه دې سرغړونې نـه خبر شو پـه پوره او بشپړ ډول يـې د کورنـي او داخلي اړودوړلـه مخـې ونـه شـوای کولای . چې د بېګانه دښمن د دغه حرکت او تيري مخـه ونيسـي خو سره له دې يې هم د دوی ټکولـو تـه ملاوتړلـه او هغـې خوا تـه دعسکري کلك فوځ سره ور روان شو د تيمورشاه فوځي پېښې، چې پورتـه مـو ورتـه اشـاره وکـړه، دادي ، پـه لانـدې تـوګه څېـړل کيږي :

## ۱ - د تېمور شاه لښکري د ملتان لورته :

د لـوی احمـد شـاه بابـا د مړينې نـه وروسـتـه سـيکان سـره وښورېدل ، غوښتل يې ، چې خپـل ځان آزاد کړي؛ نـو د ملتـان د ښار شاوخوا يې ونيوله.څه وخت، چې تيمورشـاه ددوی لـه دې نيـت او دده پـه ضد خوځېدنـې نـه خبر شو د هغـو د مخنيـوي د پاره يې په ډېره مېړانه او توره ور و دانګل [۱]

---

[۱] هزاره ملا فيض محمد، سراج التواريخ، لومړي توک، ۳۸ مخ

سېکهان ، چې د تیمورشاه د کورنیو ستونځو، شخړو او اخته کېدونه خبر وو لا پسې زړور شول ؛ نو په پوره قوت سره راټول او شپېته (٦٠) زره عسکر [١] يې برابر کړل. له دې ترتیب او نظم نه وروسته د چناب او راوي دریابونو څخه را واوښتل اراده يې وکړه ، چې دېره اسماعیل خان ، دیره غازي خان او نورې دیرې يو په بل پسې ونیسي. دوی په دې کې لاهو وو او هیله يې درلودله ، چې تر دغو دیرو وروسته به سیند هم ونیسي او په دغه خیال يې خپل نظم برابر وو.

تېمورشاه ، چې ددوی له دې اړودوړ نه خبر شو؛ نو په دې لنډ وخت کې يې لومړی د خبرو او اګاهۍ د پاره سردار حاجي علي خان دوی ته د سفیر په توګه ورولېږه، څو ، چې دی سېکهان د تېمورشاه له امرونو نه خبر کړي. څه وخت ، چې علي خان هلته ور ورسېد؛ نو د سېکانو له خوا سمدلاسه ووژل شو [٢].

---

[١] د سلطاني تاریخ د مؤلف په حواله د سېکهانو شمېر پنځوس زره تنه ښودل شوی، له دې جوتیږي، چې د سېکهانو د شمېر په باره کې د مؤرخینو ترمنځ اختلاف دی

[٢] کله چې حاجي علي خان د سېکهانو مقر ته ور ورسید، نو ډېره خوږه ژبه او لهجه يې هغوی ته د تیمورشاه د نصیحت نه ډک پیغام ولوست . د تیمورشاه پیغام د سولې او ښه نیت د خبرو نه ډک و. څنګه، چې سېکهان په خپله توره غره وو په خپل منځ کې يې سره وویل: ګورئ تیمورشاه اوس غواړي، چې په دې توګه موږ وډار کړي، حال دادی، چې دی په دې ډول سره له موږ څخه داریږي، د حاجي علي خان پیغام وروړل ورباندې بد ولګېدل، هغه خوار يې په ونه وتاړه او په خورا بې رحمۍ سره يې وواژه

تېمورشاه ، چې د سېکانو له دې شوم نیت او بد عمل او حال نه خبر شو، د حد نه زیاته سخته پرې تمامه شوه. سمدستي یې خپل عسکر او منصبداران راوغوښتل او د ملتان لوري ته یې د سېکانو د ځپلو او حملې د پاره د تیارۍ امر ورکړ. ده په خپله سرې جامې او کالي ، چې د ونیو تویولو مثال او نښه وه، واغوستل او سیکانو ته یې د جنګ اعلان وکړ او د ملتان لوري ته په پوره زړورتیا ور روان شو[۱].

کله ، چې تیمورشاه پېښور ته ورسېد؛ نو سمدلاسه یې اتلس (۱۸) زره تورزن او زړور عسکر د زانګي خان (جارجي

---

[۱] څه وخت چې تیمورشاه عسکرو ته د تیارسۍ امر وکړ، په دې موقع کې ده سرې جامې په تن کړې وې او پر پیل باندې د نظامي عسکرو د مشاهدې د پاره سپور و. په دې شېبه کې یې مدد خان او وکیل الرعایا ولیدل، چې د آسونو تر سیورې لاندې ناست وو. تیمورشاه د دوی له دې عمل نه ډېر په قهر او غضب شو او امر یې وکړ، چې دواړه لس لس لرګیه ووهئ.دا کار څنګه، چې ده امر وکړ هماغسې تر سره شو. د تیمورشاه مشاور دده ددغه امر نه په تعجب سره وویل : اې تیمورشاه صاحبه! په دې کې څومره لوی کمال و او خلکو ته یې مخ واړولو : هغه د لښکر دوه مېړني مشران په دې توګه وپوهول . تیمورشاه دده د خبرو په تائید وویل : زما هدف او مقصد له دغه ادبي ټکولو نه دا و ، چې دوی په دغه نرم او نازک وخت کې باید پر ځان هوساینه، آرامي او راحت قبول نه کړي. لکه نور نظامي عسکر دوی باید د ګرمۍ او یخنۍ پر و نه لري، که چېرې دوی داسې وکړي؛ نو د نورو څخه ګیله نشته ، البته د دوی هیله همدا ده...

باشي) تـر مشري لانـدې ديـر غـل او حملـې د پـاره د سـپکانو جګړې ته ولېږل او دی په خپله د نور لښکر سره يو ځای ور پسې وروسته ور روان شو...

زنګي خان ، چې ددغـه مـاموريت د سر تـه رسېدو د پاره وګومارل شو: نو د تيمورشاه لـه حضور نـه پـه ډېرې خوشالی سره رخصت شو، ده په ډېره بيړه د ملتان لـور تـه حرکت وکړ.لـه څو شپو او ورځو نه وروسته ملتـان تـه ورسېد او لـه سيکانو نـه يې دوه کروه لرې خپل عسـکر د صف او کتـار تيـاری او نـورو جنګي تدبيـرونو او مقـابلې د پاره ودرول. تـرڈې نظـم او ترتيـب وروسـته يـې امر وکړ ، چـې هېڅوك د خپلـې خوانـه د مخـامخ لښکرو په لور ورتللی نشي او هېڅوك هغه لـور تـه مـه پرېږدئ، دا ددې د پاره ، چې غليم او دښمن زموږ نه بې خبره پاتې شي، د همدې شپې په سهار يې نابېره پر سپکانو بريد او يرغـل وکړ، جنګ پيل شو، په دې جنګ کې د زنګـي خـان عسـکرو پـه ډېره ميړانـه دښمـن تـه متې ورکړ او سپکان يـې ورو ورو تېښتـې تـه مجبور کړل، پښتانـه عسـکر پر مخ ولاړل سـپکان يـې ګړۍ پـه ګړۍ يو په بل پسـې پـه شا واخيسـتل او پـه شمار يې دېرش زره تنه له تېغه تېر کړل.

تيمورشاه هم په دې وخت کـې هلتـه ور ورسېد او پـه پوره مېړانه او توريالی بڼه ملتان ته ننوت او په ډېره مېړنی حمله يـې

ښار د سېکانو نه ونیو، سېکانو ، چې ځانونه تنګ او وېره کې ولیدل سولې او روغې ته راضي شول ، تیمورشاه د دوی روغه او سوله ومنله. کله ، چې سېکان کرار او آرام شول، تیمورشاه شجاع خان سدوزی ددغه ځای حاکم مقرر کړ . په دې وخت کې ، چې تیمورشاه وضعه آرامه ولېدله: نو په پوره ډاډ سره بېرته ــ پېښور ته ستون شو او په ډېره خوشحالۍ او خوښۍ سره پېښور ته راننوت [۱]

د ملتان د پېښې او د هغې د قرارېدونه وروسته سیندیان هم سره وښورېدل او د تېمورشاه په مقابل کې پورته شول. تیمورشاه د سیندیانو د ځپلو او کرارولو له پاره سردار مددخان هغوی ته ورولېږه. کله ، چې سردار مددخان سند ته ورسېد په ډېره مېړانه سره یې د سیندیانو اړودوړ او پاڅون کرار کړ، دده بریالیتوب دا وو، چې په ډیره زیاته بریالۍ بڼه یې د سندیانو مشران او یر غلګر اېل کړل [۲]. مددخان د سیند سیمې د شکارپور حاکم ته وسپارلې او خپله بېرته پېښور ته ستون شو او د رسېدو سره سم د پادشاه حضور ته ورغی، تیمورشاه ، چې دلې وضعه بیخي آرامه ولیده: نو د پور ډاډ او اطمینان نه وروسته د پېښور له سیمې نه کابل ته ولاړ [۳].

---

[۱] پوپلزی عزیزالدین، درانی تیمورشاه، ۱۳۳۳ کال ، ۸۹ مخ

[۲] پوپلزی عزیزالدین، درانی تیمورشاه ، ۱۳۳۳ کال

[۳] هزاره ملا فیض محمد، سراج التوارخ، لومړی ټوک، ۴۰ مخ

## ۲ - د ملتان لور ته د تیمورشاه دوهم ځل پاملرنه :

تیمورشاه څرمونی (پسرلی) او وسه (اوړی) په کابل کې تېر کړل، خو په همدې موده کې خبر شو، چې د ملتان، بهاولپور او د سیند سیکانو او خلکو بیا دده په خلاف اړودوړ پیل کړی او دده د حکومت رنګېدو ته یې ملاوې تړلې دي، ددې پېښې او حرکت اصلي محرکین بهاول خان عباسي د بهاولپور والي او رئیس او حافظ الملك داو د پوتره د قام مشر او سرداران وو. دوی د سیند او ملتان ډېره زمکه په واك کې لرله. دغو یاغیانو د تیمورشاه د باج ورکولو نه ډډه وکړه او د هغه په خلاف یې، چې زړه غوښتنه شخړه جوړه او ځانونه یې خپلواك حکمرانان وګڼل. په دې ډول دوی دواړو د پادشاه د حکم او حکومت نه سرونه وغړول [۱].

تیمورشاه، چې د دوی د یاغي کېدونه خبر شو؛ نو د هغود ځیلو او ماتولو د پاره یې بیا له عسکري منصبدارانو او مشرانو سره ولېدل سلا او مشوره یې ورسره وکړه او د پوره تدبیر له نیولو نه وروسته له خپلو عسکرو سره ددغه اړودوړ د کرارولو په غرض ملتان ته په ډېره هسکه غاړه ور دننه شو تیمورشاه دغه وار ډېر په قار او غضب و، د افغانیت په مسته

---

[۱] پوپلزی عزیزالدین، درانی تیمورشاه، ۱۳۳۳ کال، ۹۱ مخ

نېشه یې ددې پېښې د قراولو له پاره سردار مددخان د عسکرو او پلټن سره مخکې د جګړې د پاره ولېږه او دی هم پسې ترشاه په بېړه ورغی. بهاول خان، چې د تیمورشاه د جنګ او مقابلې توان نه درلود سمدلاسه یې تېښتې ته ملا وتړله، خپل کور او کهول سره د بهاولپور نه د باندې پنځه دېرش کروه لرې له ملتان نه ووت. په هغه بې اوبو سولین او شګلین میدان او ډګر کې دېره شو، چې هلته یې د ځان د ساتنې د پاره کلا ودانه کړې وه، په دې توګه — ده هیله درلودله، چې له تیمورشاه نه به ځان وساتم او د هغه له یرغل نه به دلې په امن کې پاتې شم او له ځان سره یې وویل: دې بې اوبو شګلین ډاګ ته به دده عسکر په ماپسې رانشي؛ نو په ډېره بې غمۍ سره په دغه ځای کې په خو شالۍ سره دېره شو...

د تیمورشاه د بهاولپور د جګړې او سخت لوټ کولو نه وروسته سردار مددخان اسحق زی ځان ته را وغوښت او هغه ته یې په کلکه د بهاول خان د نیولو او ټکولو وظیفه ورکړه. سردار مددخان د شلو زرو عسکرو سره د بهاول خان د نیولو د پاره هغې خواته په ماموریت روان شو او امر یې وکړ، چې مخکې له مخکې باید غله، اوبه او وابنه د ځان سره واخلي، سردار مددخان د ټولو اړتیاوو د پوره کېدو نه وروسته د سولین او

ته ورسيد ، دلته يې ديوې مياشتې له تېرېدو وروسته ګوهر نسا بيګم د عزيزالدين مغلي لور خپل ځوان زوی شهزاده تيمور ته نکاح کړه دا د شهزاده تيمور دوهم واده و . چې تر پنځلس کلنۍ پورې يې په نصيب شو، احمدشاه د خپلې نږور دواده د مراسمو د تېرېدو نه وروسته ډهلی عزيزالدين محمد ته پرېښود [١]

څه وخت چې احمدشاه بابا له هند نه بېرته افغانستان ته د راستنېدو خيال وکړ او د راتګ په وخت کې کله ، چې لاهور ته راورسېد ؛ نو خپل ځوان زوی شهزاده تيمور يې چې ډېر حليم، نرم او د ښه سلوك څښتن و او د خپل پلار اعتماد يې حاصل کړی و؛ نو د لاهور، ملتان ، کشمير، تتې ، پنجاب او نورو ډېرو سيمو د والی په حيث يې مقرر کړ، سردار جان خان ايوب زی پوپلزی يې د هغه د مرستيال په توګه وټاکه . چې له زوی سره يې په کارونو کې مرسته وکړي .د خورشيد جهان د کتاب ليکوال د تيمور شاه د ښوکړو وړو او نيکو خويونو په برخه کې ډېره ستاينه کړې ده او زياته وي چې : " ده د خپل ماموريت په وخت کې له خلکو سره ډېره نرمه وضعه او ښه چال چلند درلود" شهزاده تيمور شاه هند ته د دوهم ځل تګ نه

---

[١] پوپلزی عزيزالدين ، درانی تيمور شاه، ١٣٣٣ کال، ٢١ مخ

ریګین میدان (دښتې، بېدیا) په لور روان شو. څه وخت، چې هلته ورنږدې شو؛ نو په ډېره بیړه یې د اوبو د اړتیا د منځه وړلو له پاره لوی او ژور کویان وکېندل، خپل عسکر او څاروي یې په اوبو ماړه کړل. تر دې احتیاج وروسته یې د بهاول خان د نیولو د پاره په لازمو تدبیرونو لاس پورې کړ...

سردار مدد خان د بهاول خان کلا چارچاپېره محاصره اوونیوله. په همدې وخت کې یې خپل لوی او درانده توپونه د هغه د کلا ولور ته مخ کړل او امر یې وکړ، چې په کلا برید ښخ کړئ، که څه هم په لومړي سرکې د توپونو مړدکیو په کلا باندې څه اثر ونه کړ، خو په همدې شېبه کې بخت د مدد خان سره مرسته وکړه او د توپ یو مردکی د کلا سوري څخه ننوت او د داریو (باروتو) په خره او رېشه کې ولوېد، د لګېدو او لوېدو سره سم و چاود ددې چاودنې په اثر د کلا دېوالونو کې درزونه پیدا او ځینې دېوالونه یې ولوېدل او هم د دوریو په خره کې د اور لمبې پورته شوې[1].

څه وخت، چې د کلا دېوالونه راولوېدل او د دوریو د اور غوړانجې پورته شوې؛ نو سردار مدد خان په خورا زیاته مېړانه کلاته ورننوت. بهاول خان او د هغه زوی یې ونیول او د نیولو سره یې متې پرې وتړلې او تېمورشاه حضور ته یې لاس تړلي

راوستل ، څه وخت ، چې تیمورشاه پلار او زوی ولیدل ددې ناوړه اقدام په باب یې ، چې دده د پاره یې کړی و خبرې ورسره وکړې ، پلار او زوی دده په مخکې په خپل ناوړه عمل اوکړو باندې اعتراف وکړ او ځانونه یې په ډېرې پښیمانۍ او ملامتیا سره پادشاه ته تسلیم کړل. تیمورشاه ، چې د نرم زړه ښښتن و هغه یې وبخښل او د درناوي په مقابل کې یې د لاهور او بهاولپور حکومت ور وسپاره. تیمورشاه د ملتان نه د بېرته را ګرزېدو په وخت کې علي محمد نامی خاګوانی ، چې څه موده پخوا یې د ملتان یوه سیمه نېولې وه او ددې صوبې صوبدار شجاع خان سدوزایي یې په ملتان کې بندي کړی و د ور رسېدو سره سم یې ونیو او بې له درنګه یې مړ کړ [1]. ددې سیمې حاکمي او مشري یې بېرته نواب شجاع خان ته وسپارله. تر دې وروسته تېمورشاه په بهاول خان باندې د ډاډ او اعتماد کولو نه وروسته په خورا دبدبه او برم سره د کابل په لور راوخوځېد او د ملتان اړودوړ یې په مېړانه سره پای ته ورساوه.

---

[1] پوپلزی عزیزالدین، درانی تېمورشاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۹۲ مخ

[1] پوپلزی عزیزالدین، درانی تېمورشاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۹۳ مخ

## ۳ - د تېمورشاه د حکومت لور ته د بخارا د حکمران شامرادبيک لاس غزونه :

د تېمورشاه د سلطنت په وروستيو کې په ۱۲۰۴ هـ ق کال کې د بخارا حکمران شاه مرادبيك تيمورشاه ته د هغې ستونزې اواخته کېدونه ، چې په ملتان او د سيند په جنگونو او اړودوړ کې ورته پېښنه وه او ددغو پېښنو د کرارولو د پاره تېمورشاه هغې خواته خپلې شپې او ورځې اوړدې کړې ، نو د تيمورشاه له دې ستونزې اواخته کېدونه د بخارا حکمران استفاده وکړه او دا وخت يې د ځان د پاره د بل هر وخت نه ډېر مناسب وګانه او له دې کبله يې د آمو درياب پر جنوبي برخو باندې خپل تېري او بريدونه پيل کړل [1].

شاه مرادبيك په ډېر آرام زړه پر مخ راغی او د مروې سيمه يې ونيوله.ددې ځای نه يې دېرش زره او سېدونکي د بخارا په لور په خورا ظلم او زور سره وکوچول.د دوی د لېږد او کوچ پر ځای يې يوه ډله بخارايان د دوی ځايونو ته را وستل او په آباديو يې په خوښۍ سره بنا وکړه تېمورشاه د ملتان د سفر او راګرزېدو نه وروسته څه وخت ، چې د شاه مرادبيك له تېريو او تجاوز نه خبر شو ، هغه ته يې ډېر نرم او د مهربانۍ نه ډك

---

(۱) پوپلزی عزيزالدين ، درانی تيمور شاه ، ۱۴۴۴ کال ، ۹۸ مخ

مکتوب او لیك هغې خواته ورولېږه ، په دې توګه یې هغه وپوهولو ، چې دی باید د افغانانو او درانیو پر ملکونو د تېري او نېولو نه واوړي او ځان ور څخه په کلکه وساتي. کله ، چې د تېمورشاه مکتوب هغه ته ور ورسېد؛ نو د بخارا حکمران د ده د مکتوب نه سر وغړولو او څه اعتنایې ونه کړه او هغه یې ونه مانه. د تیمورشاه د مکتوب په مقابل کې یې دنه ځواب ورکړ. کله ، چې دراني تیمورشاه د مرادبیك له خوانه منفي ځواب ولید؛ نو په ۱۲۰۴ هـ ق کال کې د یو لك [1] پوځ سره د هغه د ټکولو او ماتولو د پاره په ډېر خربنم (قهر) ور روان شو. تیمورشاه د بامیانو له لیارې بلخ ته ننووت او د هغه ځای نه وریسې اقچې ته وخوځېد. په همدې وخت کې د مخامخ له خوا شاه مرادبیك د پنځو سو زرو عسکرو سره د تېمورشاه د مقابلې د پاره راغی. په ورځو ورځو د دواړو دښمنو تر منځ خونړي جنګونه پېښ شول او جګړې دوام درلود. د جنګ په وخت کې شاه مرادبیك د خپل پلان له مخې ، چې ترتیب کړی یې و عمر خوشبیګي یې د دېرشو زرو عسکرو سره د ناڅاپي یرغل د پاره د تیمورشاه لښکر ته ولېږه. په همدی وخت کې یې علي ویر دي نامی بل افسر په دې مامور کړی و ، چې دی به د درانیو د آزوغ

---

[1] هزاره ملا فیض محمد ، سراج التواریخ ، لومړی ټوک ، ۴۱ مخ.

او خرڅ د لارې شنډولو په خاطر کلك اقدام کوي او د مرګ تر وروستۍ سلګۍ پورې به د درانيو آزوغ په دې لار نه پرېږدي د شاه مرادبيك له دې پلان او جنګي ترتيب نه تيمورشاه خبر و او د شاه مرادبيك له شوم نيت نه ، چې تيمور شاه ته به ماتې ورکړي او برى به يې په نصيب شي هم ښه اګاه شوى و ؛ نو ده هم د افغانيت او پښتونوالۍ او خاورې د ساتنې په مسته نښه خپل جنګي ترتيبات له پخوا نه ښه کلك کړي وو .

تېمور شاه ، چې دده د حرکت لاره څارله ؛ نو خپلو توپچيانو ته يې د ټاکلي سنګر په مخ کې ځاى ورکړى وو . دوى يې ددې د پاره درولي وو ، چې څه وخت د شاه مرادبيك لښکر را ورسيږي په هغوى به کلك بريد کوي ، چې د برې نيشه يې له سره وباسي او کلکه ماتې ورکړي. دا کار لکه څنګه ، چې د تيمورشاه هيله وه په ډېره بريالۍ بڼه ترسره شو : کله ، چې د شاه مرادبيك لښکر د تېمورشاه خوا ته راغى او ښه را وړاندې شو؛ نو د رارسېدو سره سم تېمورشاه خپلو توپچيانو ته د ويشتلو امر وکړ ، توريالیو او مېړانيو توپچيانو د تېمورشاه دامر سره سم سخت بريد پيل کړ ، د دواړو خواو ترمنځ سخته نښته پيل شوه .د دواړو خواوو ترمنځ جنګ ډېر سخت شو ، خو د توريالو افغانانو لښکر جنګ پر مخ بوت او ورو ورو يې

اوزبکو ته په بېرته تلو ماتې ورکړه او تېښتې ته اړ شول. شاه مرادبیك له دې ماتې نه ډېر خواشینی او خپه شو. پوه شو، چې که جګړې ته دوام ورکړي ښو به بیخي ورك او خوار شي؛ نو سمدلاسه سولې او روغې ته راضي شو[1] او داسې پریکړه یې له خپل ځان سره وکړه: مرادبیك خو تنه عالمان د بخارا نه را وغوښتل، د ننواتې او عذر کولو په هیله یې د قرآن مجید په ور، کولو سره د تېمورشاه حضور ته ورولېږل او هم یې دوی ته دا پیغام ورکړی و: "له دې وروسته به داسې کار له مانه، چې د افغاني پادشاه د خواشینۍ سبب کیږي ونه وینۍ[2]".

تېمورشاه، چې ډېرنرم زړه خاوند سړی و. دده ننواتې یې ومنله او د دواړو هېوادو ترمنځ یې سرحدي پوله او ټك د جیحون سیند وټاکه. تیمورشاه تردې بري وروسته د کابل په لور راوخوځېد د راګرزېدو په وخت کې د تیمورشاه ډېر لښکر د سړو او یخ د لاسه په هندوکش کې مړ شو، خو له دې سره سره تېمورشاه په ډېره دبدبه، بري او شان سره کابل ته په ویاړ راغی.

---

(۱) درانی سلطان محمد، سلطاني تاریخ، ۱۵٦ مخ

(۲) درانی سلطان محمد، سلطاني تاریخ، ۱۵٦ مخ

# دريم فصل

## دولتي جوړښت (تشكيل) :

د تېمورشاه د دورې او حکومت مذهبي ، اقتصادي ، مالي، عسكري (حربی) او اداري جوړښت په زړه پورې موضوع ده ، چې اهمې برخې يې دادي :

**اداري جوړښت :**

د اداري تشكيل او جوړښت له مخې ، چې هغه وخت يې رواج درلود ، پادشاه مطلق حكمران و ، له دې امله ټولې اداري او دوتري څانګې، وزارتونه او ولاياتونه دده تر مستقيم کنترول او حكم لاندې وو . پادشاه د خپل صلاحيت له مخې حق درلود ، چې واليان [1] او وزيران مقرر او له وظيفې نه لرې کړي ، د قضا غړي او د لويو رتبو نور مامورين دده په خوښه او اراده د كار ډګر ته راتلل او دده د فكر او رايې له مخې به يې كار پيل كاوه .

**وكيل الدوله :**

د هغې زمانې د اداري جوړښت او رغاونې له مخې وكيل الدوله هغه څوك و ، چې د پادشاه په حضور كې يې د نايب السلطنه ، صدر اعظم ، نظامي او ملكي لوی مشاور او محور

---

[1] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تېمورشاه ، ۱٦۴ مخ

په توګه دربار کې وظيفه ترسره کوله وکيل دوله تر هر چا ډېر غټ اعتبار او قدرت درلود دا کس او تن د هغې ورځې رئيس الوزرا (صدراعظم) و او د پادشاه په غياب کې يې د نايب السلطنه په څېر د پادشاهۍ د ټولو کارونو د سرته رسېدو او وار ـ ي کولو ماموريت په غاړه درلود.

وکيل الدوله د هغې زماني د خورا غټو منصبدارانو او مشرانو له ډلې شمېرل کېده او کولای يې شول، چې د پادشاه سره د مخالفت په وخت کې د هغه لاس د کار نه لرې او پر ځای يې پادشاه شي...

د تيمورشاه د سلطنت او پادشاهۍ په وخت کې دده نايب السلطنه او وکيل الدوله سردار عبدالله خان ايوب زی پوپلزی و، سردار عبدالله خان د لوی احمدشاه بابا د امپراتورۍ په وخت کې د ديوان بيګی (د دو ترونو امر) وظيفه په غاړه ـ رلوده [1] دی په دېوان بيګي سره مشهور و هغه د خپلې زمانې پوه عالم او لوی سړی تېر شوی دی. د تيمورشاه د زمانې ډېر درانده کارونه دده په مشوره او فکر سرته رسېدل. تيمورشاه دېوان بيګي ته په ډېر درانده نظر کتل او په هر کار کې يې له هغه سره مشوره کوله.

---

[1] غبار غلامحمد، احمد شاه بابا، ۲۱۵ مخ

## مشیر، مدارالمهام (داخله او عدلیه وزیر) :

د تېمورشاه دوره او سلطنت د اداري جوړښت له مخې په هغه وخت کې د عدل وزارت او کورنیو چارو وزارت له یو او بل نه ګوښي او جلا نه وو ، بلکې د دواړو وزارتونو کارونه سره ګډ او شریك وو . دنن ورځې په شان یې ځانته جلا نومونه نه درلودل . دا دوه وزارتونه به د پادشاه نه وروسته د وکیل الدوله د خوانه اداره کېدل او د دولت د هر مهم ارکان ګڼل کېده .

څرنګه ، چې په هغه وخت کې د حکامو تغیر او مقرري د عمومي هوساینې او نظم د ساتنې دپاره او د قضاو وتاکل په شرعیه محکمو کې د یو بل سره تړلي وو؛ نو ځکه ددغو دوو وزارتونو کارونه د یو او بل سره په هغه دوران کې ګډ او نه بیلېدونکی وو .

د تېمور شاه حکومت په وخت کې د عدل وزارت د مدار-المهام په نامه سره یادېده ، چې د محکمو د وظیفو څخه سوا د کورنیو وزارت ځینې وظیفې او چارې هم پرې تړلې وې او د ټاکلي وزیر له خوا به تر اجرا لاندې نیول کېدې [۱].

په هغه دوران کې د عدل وزیردخان علوم او یا د قاضي القضات په نامه سره مشهور و ، د عدل وزیر به خامخا هغه

---

[۱] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تېمورشاه ، ۱۳۳۳ کال. ۱۲۲ مخ

څوك و، چې په شرعيه علومو كې يې تر ټولوى لاس درلود .دې سړي به ټولې قضايي چارې او كارونه د محمدي شريعت سره سمې فيصله كولي. د اسلام او محمدي دين نه يې خلاف هيڅ كار نه شو كولاى. له دې امله د عدل وزارت وظيفه ډېره درنده او پاكه وه.چا به ، چې د شريعت څخه مخالف كار وكړ ، هغه ته به د شريعت سره سمه سخته جزا وركول كېده

د تېمورشاه د پادشاهۍ په زمانه كې د مدار المهام درنده وظيفه د قاضي فيض الله خان دولت شاهي په غاړه وه ، دې سړي به د نن ورځې د عدل پر چارو برسيره د كورنيو چارو وزارت كارونه او د دربار مشاوريت هم په غاړه درلود .دا سړى په خپل وخت كې تېمورشاه ته ډېر منلى و ، دده نوم په تېرو بحثونو كې ځاى په ځاى راغلى دى او په ختيه پښتون نه و. د خاص مهارت په خاطر تېمورشاه ته ډېر ګران و ...

**مستوفي** :

كه د تېمورشاه د زماني اداري او دولتي جوړښت ته ځير شو؛ نو له هغه نه په ښكار سره جوتيږي ، چې دده د سلطنت او حكومت په دوران كې مستوفي د اعلى دېوان او د لوى اركان په حيث خپله دنده تر سره كوله.دده كارونه د وزيرانو نه وروسته ډېر درانده او غوره وو. دده د پادشاهۍ په وخت كې څو كسانو

وروسته ( د خپل پلار سره د پاني پت د جګړې د تمامیدونه وروسته ) د لوی شاهنشاه (احمد شاه ) سره کندهار ته راستون شو او د رسېدو سره سم د هرات د والی په حیث وټاکل شو[1] دی تر هغه وخته پورې د هرات والي و، ځو، چې د پلار د مړینې نه وروسته د افغانستان د پادشاهۍ پر تخت د خپل پلار په مخکنۍ اشارې سره کېناست

ب : پر تخت کېناستل :

اعلیحضرت احمدشاه بابا د خپلې مړینې نه د مخه د هغه لیاقت او ځیرکۍ له مخې ، چې په شهزاده تیمور کې یې لیدله: نو د نورو زامنو څخه یې هغه د سلطنت د چارو د اجرا د پاره ورګانه . له دې کبله یې د هغه د ولیعهد کېدو اشاره په خپل ژوند کې کړې وه. کله ، چې لوی احمد شاه بابا مړ شو. شهزاده تیمور په هرات کې و[2] وزیر شاه ولي خان د وخت نه استفاده وکړه او خپل زوم شهزاده سلیمان یې په کندهار کې پر تخت کیناوه د وخت ځینو غټو مشرانو ، چې د احمد شاه بابا وصیت یې د شهزاده تیمور د پادشاه کېدو د پاره د هغه له خولې اورېدلي و؛ نو د وزیر شاه ولی خان په دې کار خواشیني شول او

---

(۱) احدیزاده امین الله . د ۱۲ تولګي تاریخ (د ښوونکو اکاډیمی) ۱۳۴٦ کال، ۲۵ مخ

(۲) احدیزاده امین الله . د ۱۲ تولګی تاریخ ، ۱۳۴٦ کال ، ۲٦ مخ

د مستوفیت وظیفه اجرا کړې ده ، چې د ټولو نه یې مشهور او مخور عبدالطیف خان الجامي د کشمیر اوسېدونکی و [۱]. د مستوفي غوره کار د مالیې راټولول و. دې سربېره به هر کال د هېواد له ټولو برخو څخه مالیه د ټاکلو اصولو له مخې ، چې د دولت ستر عایدو راغونډولو او وروسته له حساب کولو او اندازې معلومولو نه به یې پادشاه پرې خبرولو او د هغه له ستر ګو نه به یې د ملك مالیه، چې څومره ده ، تېروله. مستوفي په هر ځای او ولایت کې ځانګړی دوتر او ځانګه درلودله ، چې د بېلوبېلو ولایاتو مالیه به د موظفو کسانو له خوا د مستوفي د امر د ور رسېدو سره د مربوطې سیمې له خلکو نه را ټولوله او تر راغونډولو وروسته به یې مستوفي ته رسوله. مستوفي به بیا د وېش له مخې هر ځای ته خپله د ضرورت ونډه حاکمانو ته ورلېږله ، یا به داسې وه ، چې د هرې سیمې حاکم به د ضرورت وړ پیسې د مستوفیت او مالیې له ځانګې اخیستې ، لنډه دا ، چې د مستوفي کارونه ډېر او درانده وو.

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمورشاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۱۲۵ مخ

**امین الملک ( د زراعت رئیس ) :**

که څه هم دا نوم ددې عنوان سره سر نه خوري او د ملك او هېواد او د ساتنې په معنا دی، خو د هغه وخت د اداري جوړښت او تشکیل له مخې یې د اجراء تو او کارونو بڼه هم دانه وه ، دا عنوان د املاکو د مدیر او د نن ورځې د کرنې له وزیر سره مشابهت لري.

د تیمورشاه د سلطنت او واکمنۍ په وخت کې دې اداري او دولتي څانګې د دولت د ځمکو (خالصه جاتو) محصول ټولولو او د حکومت په چارو به یې لګاوه [1] او یا به یې د دولت خزانې ته سپاره.

دغه مهمه او درنده اداره د احمدشاه بابا او تیمورشاه په زمانه کې د اعلی دیوان یوه څانګه شمېرل کېده ، چې د دولت محصول به یې را تولولو، دا شان دې څانګې د هېواد په هر ولایت او دولتي سیمه کې دولتي ګدامونه جوړ کړي وو، چې هر ولایت به د ضرورت او اړتیا په وخت کې خپله ونډه ددې راټول شوي محصول نه د دولت په کار کې لګوله.

---

[1] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمورشاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۱۲۴ مخ

د تيمورشاه د واکمنۍ په وخت کې د هغه وخت د امين الملك وظيفه نورمحمدخان بابري ته ورسپارل شوې وه ، دې سړي دا دنده په ډېر ښه شان سره پر مخ بووله او د څه وخت نه وروسته د دوترونو د مهتمم په دندې و ګومارل شو.دا، چې دا سړی په خپلو ورسپارل شويو دندو کې ډېر صادق او رښتينی و؛ نو د تيمورشاه د ډېر باور له مخې د ماليې د محکمو د پلټنې دنده هم ورته په برخه شوې وه.

**ايشك اقاسي (د دربار وزير ) :**

د تيمورشاه د اداري تشکيل په لړ کې ايشك اقاسي د دربار د وزير حيثيت درلود.ددې سړي کار ډېر دروند او غوره و. ايشك اقاسي به د دربار ټول کارونه پرته د انشاء له دوتر نه ، چې د منشيانو په لاس کې و اجرا کول.دا سړی پادشاه ته هم ډېر منلی او نږدې و.دا، ځکه پاشاه په هر چا د دربار د وزير او ددې وزارت د کارونو اعتماد او باور کولای نه شو.دې سړي د دربار د وزارت او د دربار د ټولو څانګو د مامورينو نظم او ترتيب په لاس کې و او ده به د دربار د ټولو لګښتونو او خرڅونو حساب په خپله سنجاوه.کله به ، چې دده له خوا نه د دربار مصرف وټکال شو؛ نو بيا به د موظفو کسانو له خوا تر سره او پوره کېده...

د تیمورشاه د سلطنت په زمانه کې دده ایشك اقاسي سردار محمدعلم خان پوپلزی و.سردار محمد علم خان د منلي او مخور دېوان بیګي (عبدالله خان) زوی و.موږ پورته وویل، چې تیمورشاه د ځان د ساتنې له پاره په هر چا باندې اعتبار کولای نه شو او هم یې د دربار کارونه هر چاته په لاس کې نه ورکول څه وخت، چې دېوان بیګي مړ شو، تیمورشاه سردار محمد علم خان ته په میراثي ډول دا منصب ورکړ[1].

**منشي باشي او خاص دېوان :**

د تیمورشاه د سلطنت او پادشاهۍ په دوران کې سر منشي د منشي باشي او شاهي دارالتحریر د خاص دېوان په نامه سره یادېده او ډېر دروند او غوره کار ګڼل کېده[2].

د تېمورشاه په وخت کې منشي باشي د ډېر قدرت او صلاحیت څښتن و.د دده تر لاس لاندې ګڼ شمېر پخو منشیانو او لیکونکو کار کاوه.د پادشاه فرمانونه (ارقام) او نورې غوره پاڼې په دده پورې تړلې وې . . .

د تېمورشاه په زمانه کې هر چاد منشي باشي وظیفه تر سره کولای نه شوه.ځکه، چې دا دروند کار د منشي باشي په

---

[1] پوپلزی عزیزالدین، درانی تېمورشاه، ۱۳۳ مخ

[2] پوپلزی عزیزالدین، درانی تېمورشاه، ۱۳۳۳ مخ

لیاقت او استعداد پورې تړلی و. چا به ، چې په ډېر قدرت او د خلاقه هنر په زور شاهي فرمانونه لیکل؛ نو د لیك په کار کې، د حسن خط (ښکلي خط مراعات یوازېنی ارزښت و) لیکل غوره او په زړه پورې اصل شمېرل کېده. چا به ، چې ښکلی خط درلود ؛ نو هغه به همدې درانده کار ته ګومارل کېده ، کوم کس به ، چې په دې مهمه دنده او کار کې د ځان نه لیاقت څرګند نه کړ هغه په دې دنده مقررېدلی نه شو. په دې توګې سره وینو، چې د ښه خط ښتن د منشي باشي ( د ښکلي خط خاوند ) میرزا هادي خان و. دا سړی د تیمورشاه د پلار لوی احمدشاه بابا له وخت نه په دغه درنده او مهمه دنده باندې مقرر او ګومارل شوی و. ده دا غوره او اهمه دنده په ډېره ښه وجه او د ځان نه د لیاقت په ښودلو سره ترسره کوله. که سړی دده د لاس خط او فرمانونه وګوري؛ نو به دغه حقیقت په پوره توګه ورته جوت شي. د مېرزا هادي له مرګ نه وروسته د منشي باشي د دندې د پاره اعلیحضرت تیمورشاه ابراهیم خان، چې په مشرف خان سره مشهور و، دې کار ته وګوماره [1].

---

[1] تېر ماخذ وګورئ.

## صندوق دارچي ( د خورځونو رئیس ) :

د هغه وخت د اداري تشکیل په اساس خزانه ډېره غوره او مهمه اداره وه. د تیمورشاه د واکمنۍ او حکومت په وخت کې خزانه د اعلی دېوان تر کتنې او نظر لاندې اداره کېدله. د دولت نورې ټولې خزانې دلته د ذخیرې او ډېرۍ په توګه ساتل کېدلې، دوی دغه د خزانو ذخیره او زېرمه د مالیې نه بیله او ګوښې کړې وه. دا کار ددې د پاره ترسره شوی و، چې د پادشاه د پاره ځانګړې خزانه په نظر کې وه او د صندوق دارچي له خوا یې کتنه کېدله ، له بلې خوانه به د مالیې ډېره برخه د مامورینو ، لښکرو او قومي مشرانو په تنخا او معاش پورې لګېدله ؛ نو ځکه د پادشاه له پاره ځانګړې او ځانته خزانه په تشکیل کې نېول شوې وه.

دا ټکی هم د یادونې وړ دی ، چې د خپل هېواد دننه مالیه به د مامورینو ، لښکرو او قومي مشرانو په تنخا پورې مصرف کېدله. د تر لاس لاندې ملکونو مالیه او باج به یوازې او یوازې د پادشاه خزانې او ذخېرې ته راټولېدې او هلته به د پادشاه د پاره د صندوق دارچي له خوا خوندي کېدې [1]

---

(١) پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمورشاه ، ١٣٠ مخ

د تیمورشاه په زمانه کې دده لوی او عمومي خزانه دار او د هغه وخت په اصطلاح صندوق دارچي التفات خان و، دا سړی د لوی احمد شاه بابا په دوران کې دده د خواجه سرای په نامه دنده په غاړه درلوده او احمدشاه بابا ته ډېر منلی او نازولی و، تیمورشاه ، چې په ده باندې زیات باور درلود؛ نو دغې چوکۍ ته یې لوړ کړ ، څو ، چې دده مالونه ښه شان سره ورته خوندي وساتي.

[عرض بیګي (د عرایضو آمر)]:

د اداري تشکیل له مخې عرض بیګي، د نن ورځې د عرایضو د مدیر او آمر په څېر او څه له دې لوړه دنده د سریاور په شان د پادشاه په دربار کې په غاړه درلوله. دا سړی به تل په دربار کې حاضر و. د عرض بیګي وظیفه په هغه زمانه کې د دربار د وزیر په هدایت اود هغه تر امر لاندې اجرا کېدله. تیمورشاه هم د نورو پادشاهانو په شان عرض بیګي درلود او دا اداري څانګه دده په وخت کې پیاوړې او بشپړه وه. دده د دربار عرض بیګي محمد اکبرخان و، چې دده په خوښه په دې وظیفه باندې ټاکل شوی و [1].

---

[1] پوپلزی عزیزالدین ، درانی تیمورشاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۱۳۹ مخ

## جهرچي باشي (د خپرونو ، تبليغ او حکومتي چارو آمر) :

د جهرچي باشي دنده په خپل وار سره په خپل ځای کې ډېره درنده وه او خورا غوره بڼه يې درلودله. داپه دې معنا ، چې جهرچي باشي به هره ورځ پادشاهي فرمانونه ، پيغامونه او خبرونه د دربار غړيو او نوروډلويو رتبو ماموړينو ته رسول. جهرچي باشي به د سفر (لېږد) او جنګ په وخت کې د پادشاه امرونه په جهر او لوړ غږ سره خلکو او ولس ته اوړول او رسول به يې. ددې سړي تر لاس لاندې نورو ډېرو وړوجهرچيانو وظيفه په غاړه درلودله. پردغو جهرچيانوبهٔهېواد له هرې سيمې نه خبرونه او احوال راټولولو...

په هغه وخت او زمانه کې ، چې د مخابرې او آژانس وسايل ډېر لږ.او يا هيڅ نه وو؛ نو ددې له امله او د هغه زيات ضرورت او اړتياله مخې، چې د هېواد د لرو سيمو او يا د هېواد نه د باندې خبرونه ډېر ضروري ګڼل کېدل؛ نو، ځکه جهرچيانو ډېر قدر او عزت درلود او د دوی د خبرونو راوړلو ته سخته اړتيا وه. کله به ، چې د دوی قدر او عزت چا ونه کړ؛ نو کولای يې شول ، چې په خپلو راټولو شويو خبرونو او احوال سره خلک په غلطه تېر باسي او دروغ ووايي ، که ، چېرې دوی دا کار کړی وای؛ نو طبيعي وه ، چې يو عالم کړاو او تکليف يې رامنځ ته

کاوه. ددې مثال په څرګند يدو سره جوته شوه ، چې په هغه دوره او وخت کې جهرچيانو ډېر قدر درلود او هم د ورځې لوی تېولنيز ضرورت په دوی پورې تړلی و. له نيکه مرغه نن ورځ دا آهم کار د راډيو ، تليفون ، تيلګراف او بې سيم په واسطه سره اجرا او تر سره کيږي...

د تيمورشاه د دورې جهرچي باشي غازي زنګي خان و ، چې د ملتان د سېکانو په جګړه کې يې د تيمورشاه د اتلس زره کسيز لښکري پوځ مشري او واك په غاړه درلود [1] د هغه زړورتوب او مېړانې له امله ، چې ده درلودله د ملتان د تاريخي او درندې جګړې قهرمان وګڼل شو. دا سردار د هغه مراد خان ورور دی ، چې د مراد خانی د کوڅې نوم [2] د هغه د مېړانې او تورې له مخې ور باندې د يادګار دپاره اېښودل شوی دی. دی هم د خپل ورور په شان توريالی او مېړنی و ، چې د ملتان د جنګ اتل وګڼل شو.

---

[1] هزاره ملا فيض محمد ، سراج التواريخ ، ۱۳۳۱ کال ، ۳۹ مخ

[2] مراد خانی د کابل د زاړه ښار د زړې برخې په منځ کې ځای درلود

**نساق چي باشي ( قوماندان ، کوتوال ) :**

د تیمورشاه د دوران د اداري تشکیل او چوکاټ له بنې نه دا جوتېږي ، چې نساق چي باشي کټ مټ د نن ورځې د امنیې او ژاندارمې د قوماندان وظیفه په غاړه درلودله. دې سړي او مسوول شخص به په ضروري کارونو او پېښو کې د پادشاه او سلطنت د نورو لوړو او غوره کسانو په خوښه د جزا د ورکولو دنده په خپل واك او لاس کې اخیسته. ځوك به ، چې مجرم او ګناهګار و، دده له خوا به په لازمه او ورته تاکل شوې جزا باندې محکومېده. لکه ، چې د باشي له کلمې نه څرګندېږي دده تر لاس لاندې یوه لویه ډله په ښار ، ښارونو او ولایاتو کې د ساتنې او امنیت د پاره په دې دنده ګومارل شوې وه او د ګزمې په بنې سره به یې خپله دنده په جدي توګه ترسره کوله. دا ټکی هم باید جوت کړو، چې په هر ولایت کې به یوه باشي خپله دنده د هغه وخت د مقرراتو سره سمه د والي په امر پر ځای کوله.

د تېمورشاه د دورې او سلطنت د نسق چې باشي دنده د نن ورځې د امنیتي قوماندان او د خلکو د څارندوی د سر مامور سره یو شان وه.[1] که چېرې سړی د تېمورشاه د دورې اداري جوړښت مطالعه کړي؛ نو به ورته معلومه شي ، چې نسق، چې باشي دقوماندان او سرمامور وظیفه په غاړه درلودله.

(۱) پوهاند عزیزالدین – درانی تیمورشاه ، ۳۰ ، ۱۳۳۳ کال ، ۱۲۹ مخ

د شهزاده سلیمان پادشاه کېدو ته یې غاړه کښېنښودله دوی د کندهار نه ووتل او د هرات لور ته د شهزاده تیمور لیدلو ته ورغلل ، تیمور، چې دپلار له مرګ نه خبر شو ډېر غمجن و د وزیر شاه ولي خان دې کار او شوم پلان ، چې د خپل زوم په برخه کې یې سرته رسولی و . تیمور شاه را جګ کړ. د هرات خلك ، چې زیات یې هزاره او ایماق وو ، ځانته راوبلل هغوی ته یې وویل : زما پلار لوی احمدشاه بابا زه په خپل ژوند کې د پادشاهۍ د پاره ټاکلی وم اوس . چې هغه مړ دی . وزیرشاه ولي خان زما ورور شهزاده سلیمان . چې دده زوم کېږي په تخت کښنولی دی ، زما د پلار خزانې یې ټولې په خپل واك کې نیولې دي . آیا له دې غاصب نه زه د تخت او سلطنت د نیولو حق لرم که نه ؟

د شهزاده تیمور له دې خبرو وروسته د هرات خلکو د خپل والي د ښه چلند له مخې. چې تر اوسه یې د ولایت چارې په غاړه درلودلې په یوه خوله هغه ته وویل : ته حق لرې . چې د سلطنت چارې په خپل لاس کې ونیسې او پر تخت کښېنې. موږ ټول ستا مله او ملګري یو. د خلکو له منځ نه شیخ یحیی. چې لوی عالم و را پور ته شو او د هغه وخت سلطنتي توره یې د شهزاده په څنګ کې ځوړنده کړه او ټول افغاني قامونه د هغه په مرسته او ملاتړ ودرېدل. له لږې مودې وروسته شهزاده تیمور

**هر کاره باشي ( د استخباراتو مدیر ) :**

که د تیمورشاه د سلطنت اداري جوړښت په کره ډول مطالعه کړای شي؛ نو به دا جوته شي ، چې د هرکاره باشي دنده د ضبط احوالاتو په څیر وه. ددې وظیفې څښتن به د سیاسي خبرونو څارل او د ضبط احوال ماموریت په غاړه درلود.

د تیمورشاه په زمانه کې دغه وظیفه د لومړي ځل له پاره آقا وقار اجرا کوله. ترده وروسته د تیمورشاه له خوا میرهوتك خان پوپلزی په دې درنده دنده باندې مقرر شو[1] دې سړي په خپل وخت کې خپله ورسپارل شوې دنده د تیمورشاه په ګټه په ډېر ښه شان او جدیت سره پر مخ بوتله. دا سړی د خپل کار د ښه اجرا له مخې تیمورشاه ته ډېر ګران او منلی و.

**قافله باشي ( د ترانسپورت او حمل و نقل رئیس ) :**

د هغه وخت د اداري رغښت له مخې قافله باشي د لېږدونکو څارویو په سر باندې مقرر و او دې سړي به د څارویو او حیواناتو د خرڅ او خوراك واښه ، اوربشې او دروښتې سمولې او هم به يې ددې دندې ترڅنګه د مستخدمینو او چوپړو (چپړاسیانو) چارې ترسره کولې. د سفر

---

[1] هزاره ملا فیض محمد ، سراج التواریخ ، ۱۳۳۱ کال ، ۵۶ مخ

او جنګ په وخت کې به يې د سوارلۍ کلك او غښتلي څاربه (څورب) آسونه برابرول [۲]. همدا شان يې د شاهي کورنۍ د تفريح د پاره ښه ښه آسونه ساتل.

**لښکر نويس ( لښکر ليکونکی ) :**

د تيمور شاه د وخت د اداري تشکيل په چوکاټ کې د عسکرو ، کامي لښکرو د بللو او رخيصتولو په غرض يوه ډله لښکر ليکونکي ددغې دندې د ترسره کولو د پاره ګومارل شوي وو ، دوی خپله دنده د اعلی ديوان تر لاس او څارنې لاندې اجرا کوله. ددغې ډلې يوازينۍ دنده د لښکرو بللو او شمېرلو ليکل و ، دوی به د خپل کار راپور وروسته له اجراء نه اعلی ديوان ته سپاره ، اعلی ديوان به د دوی کارونه ليدل او تر اصلاح او صحت وروسته به يې د پادشاه له نظر نه تېرول.

**خواجه سرای باشي :**

د اداري رغښت له مخې دې سړي ته د پادشاه د حرام سرای د کور او حرم د چارو نظم او ترتيب ور په غاړه و ، د حرام سرای يوه ډله نور کار کوونکي به هم دده له خوا اداره کېده ، هغوی به دده تر امر لاندې د حرام سرای کارونه او ورسپارلې چارې پرمخ بوولې. د تيمور شاه د پلار (لوی احمد شاه بابا)

---

[۲] پوپلزی عزيزالدين ، درانی تيمورشاه ۱۷۵ مخ

خواجه سرای باشي غازي التفات خان او یاقوت خان وو ،
د تیمورشاه د حرم سرای خواجه باشي هم یا قوت خان و [1].

## د اعلی دیوان څانګې او دایرې :

۱ - خاصه دوتر (دفتر) : دا دوتر د پادشاه د جمع او خرخ ټاکلی او ځانګړی دوتر و .

۲ - خالصه دوتر : دا دوتر د پادشاهي املاکو او آمرینو د محاسبې دوتر و.

۳ - د مواجبو دوتر : په دې دوتر کې د معاش او تخوا کارونه ترسره کېدل.

۴ - د ثبت دوتر : دې دوتر د نن په شان د ټولو سندونو او احکامو د اعتبار په غرض دوه کاپی لیکلې، یوه‌کاپي به مستحق تن ته په لاس ورکول کېده او بله کاپي به یې دوتر کې د ثبت د پاره پاتې کېده [2].

۵ - د حساب دوتر : په دې دوتر کې د نن ورځې په شان د کنترول او محاسبې چارې ترسره کیدې.

۶ - د اسنادو دوتر : دا دوتر اوس د لیك (پاڼو) او اریشف په نوم یادیږي ، په دې دوتر کې به ټول لیکونه خوندي کېدل.

---

[1] هزاره ملا فیض محمد، سراج التواریخ ، ۱۳۳۱ کال، ۵٦ مخ

[2] پوپلزی عزیزالدن، درانی تیمورشاه، ۱۳[illegible] کال، [illegible] مخ

۷ - د ثالثاتو دوتر : دا داسې یو دوتر و ، چې حکومتي محصول به یې په دریو، برخو وېشه یوه برخه به یې کرونکي (کروندګر، بزګر، دېکان ) ته ورکوله او پاتې نورې دوې برخې یې حکومت ته سپارلې په دې حساب به بزګر ته د حاصل دریمه برخه ورکول کېده.

۸ - د راهداری دوتر : دا د پاسپورت دوتر و ، چې د تګ راتګ کارونه یې کول.

۹ - د انشاء دوتر : دې دوتر ته به یې خاص دېوان وایه او د نن ورځې د شاهي دارالتحریر بڼه یې درلودله.

**مهماندار باشي :**

د تیمورشاه د وخت په اداري رغښت کې مهماندار باشي هغه څوك و، چې نن ورځ ورته د تشریفاتو آمر وایه شي. دا نوم د لوی احمدشاه بابا په وخت کې پخواله ۱۱۶۵ کال څخه منځ ته راغی ، خو دې اداري د تېمورشاه د حکومت او پادشاهی په وخت کې څه غوره توب او فوق العادګي نه درلودله ، دغې اداري ته دده په وخت کې څه ضرورت نه لیدل کېده؛ نو یې څه تشکیل هم نه درلود .له ده وروسته دا اداره او نوم د دوهم ځل د پاره د شاه زمان په وخت کې د مهماندار باشي په بڼه را ژوندی شو او د دربار په دایرو کې لوړ او اوچت ځای ونیو [1].

---

[1] پوپلزی عزیزالدین، درانی تیمورشاه، ۱۳۳۳ کال، ۱۳۹ مخ

**پیش خانه چي :**

دې سړي د اداري جوړښت له مخې د پادشاه د پخلنځي او کار خانې چارې په غاړه درلودلې ، کله به، چې پادشاه د سفر خيال وکړ؛ نو به دې مسؤول سړي د سفر ټول لاژم او ضروري سامان لکه دېګونه ، فرش ، ظرف ، د آسونو ضروريات او نور د اړتيا وړ مواد د پادشاه د هوساينې له پاره اخيستل ، د تم کېدو او تګ په وخت کې به يې دا شيان وړل او تم کول [٢].

**چندال باشي :**

څنګه ، چې په ځنډنو (پخوانو) وختوکې د پڼو او څپليو اغوستلو رواج زيات او ډېرو ، په څوکيو باندې به د ميز تر شاه او يا بې له مېزه څوك نه کېناستل او نه يې دومره رواج درلود . له دې امله په هغه وخت او زمانه کې کوټې او د ناستې ځايونه په غاليو، ټغرو او لمڅيو فرش شوي وو. څه وخت به ، چې د پادشاه ليدو ته مخور او لويان راتلل؛ نو د دوی څپلۍ او پڼې به په يوه کوټړۍ (کفش کن، دهليز ) کې وېستل کېدې او خلك به دپادشاه حضور ته لوڅې پښې ننوتل.له دې کبله ددربار لوی آمر حضور دکارونو د نظم په غرض يو تن د چندال باشي په نامه

---

[٢] پوپلزی عزيزالدين، درانی تيمورشاه، ١٣٣٣ کال، ١٤١ مخ

د پښو او څپلیو د ساتلو د پاره ګومارلی و [۱]. دده وظیفه یوازې د څپلیو ، کوښواو پښو ساتل او سمول وو.

## نظامي او عسكري بڼه :

تېمورشاه دخپل سلطنت په وخت کې عسكري مسلك ته ډېر لږ پام و. ده خپلې ټولې حملې او عسكري یرغلونه خپلو لویو جنرالانو ته سپارلي وو. ددې په نتیجه کې دده لویو منصبدارانو پاینده خان او مدد خان دده له دې اعتماد او ډاډ نه ښه غوره نوم پیدا کړ. لکه ، چې څرګنده ده تېمورشاه په خپله ډېر کم د دښمن سره د جګړې او جنګ په ډګر کې مخامخ شوی دی. سره له دې هم څنګه ، چې پادشاه لوی عسكري قوماندان و؛ نو، څکه تیمورشاه په ځینو جګړو کې په تېره د تالپورا په جنګ کې د محاربې او جګړې د ډګر لوی افسر او مشر و [۲].

مونږ دمخه دا ټکی یاد کړی و ، چې تېمورشاه د قام د سردارانو او خانانو د وېرې او ډار له امله د خان د ساتنې دپاره کافي لښكر د عمل له ډګر نه لرې کړ او د هغه پر ځای یې تنخاخور لښكر جوړ او تیار کړ. یوازیني ټولی ، چې دده سره تل ملګری او دده د ساتنې د پاره چمتو و هغه دده ټاکلی او خاص

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین، درانی تیمورشاه، ۱۳۳۳ کال، ۱۳۹ مخ.

(۲) ادوارد الایس پیرس تالیف، د یژواک او صدقی ترجمه، عروج بار کزاریي ها.

ګارد و، چې ډېر زيات افراد يې پښتانه نه وو او له نورو اوغيره قامونو څخه جوړ و.

ددې ګارد او ټولي تنخوا خورا ډېره وه او کله کله به زيات بخششونه ورته ورکول کېدل[1]. دا وجه وه، چې د تېمورشاه او د هغه د دربار نه د خپل قام او ولس اړيکه پرې شوه، له بلې خوا همداشان تيمورشاه په ولس باندې بې اعتماده و، له دې کبله هغه قامي لښکر د خپل ځان د ساتلو له پاره ونه ګوماره. ده خپل قامي لښکر پر ځای په تنخاخور لښکر ډېر اعتماد درلود. دا، ځکه په دې لښکر کې قامي سردارانو لاس نه درلود. دا لښکر دده په لاس د ځان د ساتنې د پاره جوړ شوی و. د تيمورشاه د دورې عسکري نومونه او جوړښت داسې و:

## سپه سالار:

د تېمورشاه په زمانه کې سپه سالار د نن ورځې د حربيې د وزير (د دفاع وزير) دنده ترسره او اجرا کوله[2]. د لښکرو نظم، توپخانه، باجه خانه، پوځي بېل بېل ټولګي، د قامي لښکرو ترتيب او نور لښکري او پوځي کارونه په ده پورې تړلي وو.

---

[1] الفنستن، د کابل د سلطنت او د هغو د توابعو د حال شرح، دوهم توک، ۳۵۷ مخ.

[2] سپه سالار د نن ورځې د دفاع له وزير نه لوړه دنده په غاړه درلودله.

د تېمورشاه د سلطنت په وخت کې دده سپه سالار له ۱۱۸۶ق کال څخه تر ۱۱۹۱ پورې سردار جانخان پوپلزی و ، دې پوه سپه سالار د احمد شاه بابا په زمانه کې هم همدا وظیفه ترسره کوله. دې سپه سالار د ملتان په بهاولپور او نورو جګړو کې تر ۱۱۹۱ کال پورې په خورا میړانه سره ګډون وکړ. سره له دې هم دا د پښتنو اتل ددې کال په وروستیو وختو کې دیوه غرض او مخالفت له مخې، چې د مخه ورته اشاره شوې د کندهار په دل آرام کې د فاني نړۍ نه د تل د پاره سترګې پټې کړې.

## صوبه دار :

د تېمورشاه د سلطنت د دورې په نظامي جوړښت کې د صوبه دار او سپه دار کلمې دواړې رواج وې ، ددې دووکلمو معنا په ښه شان معلومېدای نه شي ؛ ځکه ، چې د پارسي ژبې په اصطلاح سپه دار او د هندي ژبې په اصطلاح صوبه دار دواړه یوه معنا لري. د دندې له مخې یې معنا کوم بېلتون او توپیر نه سره لري.

د تېمورشاه په زمانه کې صوبه دار د نن ورځې د نایب الحکمه ، والیانو او عسکري قوماندانانو سره څه توپیر نه لرلو. دې سړي به د والي په غیاب کې د لویو ښارونو کارونه اجرا او

ترسره کول. دا شان په هغه زمانه کې صوبه دار د لوی افسر مقام درلـود او د حکومـت کولـو واك او واکې يـې اخســتی شـوې.

د تېمورشاه د حکومت په دوره کې دده مشهور او نامتو صوبه دار آزادخان د حاجي کريم داد خان زوی و، چې په کشمير کې يې حکومت کاوه [1].

د تېمورشاه د پادشاهی او سلطنت په وخت کې عسکري نومونه دادي [2]:

۱ - سپه سالار : د جنګ له وزير څخه لوړ.

۲ - د لښکر امير : د حرب د وزير په شان.

۳ - اردو باشي : نايب سالار ، فرقه مشر.

۴ - قوللر اقاسي : د فرقه مشر سره يو شان.

۵ - صوبه دار : د ولايتونو او ښارونو عسکري قوماندان.

۶ - سپه دار : د هغه وخت سپه دار د نن ورځې غونډ مشر.

۷ - بېګلر بيګي : د کرنيل په شان.

۸ - سرتيپ : بلوکمشر ، يا کپتان.

۹ - پنجاه باشي.

۱۰ - بيست باشي.

۱۱ - لس باشي.

---

(۱) هزاره ملا فيض محمد، سراج التواريخ، ۴۱، ۴۲ مخونه.

(۲) پوپلزی عزيزالدين، درانی تيمورشاه ، ۱۳۳۳ کال ، ۱۶۰ مخ.

په پورته نومونو برسېره نور عسکري نومونه هم په هغه وخت کې رواج وو. لکه برګېډ ، یوز باشي (صد باشي)، توپچي باشي ، شاهخچي او زنبورك چي. دا ټکی باید جوت کړو ، چې دا نومونه یوازې د شاهي منظم پوځ او عسکري لښکر له پاره اېښودل شوي وو.

## عسکري تنخا ( معاش ) :

د تېمورشاه د حکومت او سلطنت د دورې د عسکرو او منصبدارانو تنخوا او معاش په ښکاره او پوره ډول سره جوت نه دی ، مګر یوازې د شاه زمان د یوه فرمان نه ، چې په ۱۲۱۲ کال کې یې د محمد امیر خان قوللر اقاسي په نامه لېږلی و د تنخوا په باب یې څه درلودل. هغه دا ، چې پرته له دسترخوان نه د محمدامیر خان تنخوا د زرونه تر دووزرو پورې لیکل شوې وه . همداشان د سراج التواریخ د مؤلف دڅرګندونې له مخې (۵۶ مخ کې) د عسکري افرادو اوغړیو کالنۍ تنخوا دسلو روپیو نه تر ۱۵۰ پورې بلل شوې ده.

د تېمورشاه د سلطنت په دوره کې د جنګ او سفر په وخت کې د عسکرو او منصبدارنو کورنیو د اعاشې او اباتې

په ډېره بیړه د خپل لښکر سره د کندهار لور ته حرکت وکړ او د بکوا د دښتې له لارې د کندهار احمدشاهي ښار ته له خپلو لښکرو سره ننوت .(۱)

وزیر شاه ولي خان ، چې د خلکو زیاته مینه د شهزاده تیمور د پادشاه کېدو د پاره ولیدله ؛ نو د هغه مخې ته د هر کلي د پاره ورغی، مګر ځنګه ، چې شهزاده تیمور د قام د لویانو تر زیات تاثیر لاندې راغلی و، وزیر شاه ولي خان یې مړ کړ او د هغه په ټولو خدمتونو یې سترګې پټې کړې (د قام د مشرانو تر منځ د سلیمان د پادشاه کېدو په اثر زیات اختلاف پیدا شوی و ، چې د موضوع په ارتباط به جوت کړای شي ). دی ددې لوی سړي د وژلو نه وروسته کندهار ته په ډاډه زړه ور دننه شو ، شهزاده سلیمان ، چې پوه او هوښیارو او په دې پوهېده ، چې تیمور له ما ځخه هوښیار دی ، لیاقت لري او له بلې خوا یې هیله نه درلودله ، چې د ورونو د وژلو دوره پیل کړي ؛ نو د سلطنت او تخت د چارو نه یې لاس په خپله واخیست او هغه و ، چې تیمور شاه د افغانستان پادشاه شو (۲)

تیمور شاه د خپل ورور شهزاده سلیمان په دې نیک او شریف حرکت او کار ډېر خوشاله شو ، تر څو ، چې سلیمان ژوندی و تیمور شاه د هغه عزت او احترام کاوه، په دې ډول سره

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین . درانی تیمور شاه . ۱۳۳۳ کال . ۳۵-۳۶ مخونه

(۲) احدیزاده امین الله . د ۱۲ تولګی تاریخ . ۱۳۴۶ کال . ۲۶ مخ

دپاره افرادو ته د یوه کال تنخوا د پیشکي په توګه ورکول کېده [۱].

دولتمندو او بډایو عسکرو او منصبدار ته به د هغو تنخوا د سفر او جنګ نه د بېرته راګرځېدو په وخت کې اجرا کېدله . که جنګ او سفر به نه و؛ نو د دوی تنخوا به د نن په څېر هره میاشت حواله کېده او اخیسته به یې.

---

(۱) پوپلزی، عزیزالدین، درانی تیمورشاه ، ۱۳۳۳ کال، ۱٦۸ مخ

# څلورم فصل

## د تیمورشاه د دورې مالي بنه :

اعلیحضرت تېمورشاه د خپل سلطنت او حکومت په دوره کې مالیې ته پوره پاملرنه او توجه کړې وه ، دده په وخت کې د اقتصاد اصول او قوانین په ښه لار ا ونظم بنا.وو. ده د خپلې پادشاهۍ پر وخت شاهي لګښت او مصروف يو څه راټیټ کړ او د هغې پر ځای يې د پوځونو او لښکرو تنخوا زياته کړه [1] دده د حکومت په زمانه کې مالیه په ښه شان سره تولېدله ، د خرڅ او لګښت حساب او کتاب په اصولي لارو او ښه ترسره کېده ددغه ښه ترتيب او نظم په رڼا کې د دولت خورځو نه (خزانه) په لږه موده کې ډکه شوه [2]

د تېمورشاه د زمانې حکومتي شته او عايدات پرته له هغو لارو او مدرکونونه ، چې د "لعل بها" په نامه د نیول شويو ملکو څخه په لاس راتلل ، نور شته او عايد په لاندې ډول و :

۱ - د هغه وخت د حکومت زيات شته او عايدات په عمومي توګه مالیه وه . دا مالیه به د اجارې په توګه د پادشاه خزانې

---

[1] ظفر کاکا خیل . پښتانه د تاریخ په رڼا کې . پېښور ۸۸۸ مخ

[2] قاضی عطاؤالله خان . د پښتنو تاریخ . لومړی ټوک . ۱۴۹ مخ

ته تحویلېدله ، اجاره دارو به (په هندي اصطلاح تومن دارانو) خپل حق په زروکې د مالیې له دیوان او دوتر نه په قناعت سره ترلاسه کاوه ، هر څومره به ، چې و هغه ورته پوره ورکول کېده [۱].

۲ - د حکومتي املاکو محصول و ، چې د امین الملك په واسطه به د ښارونو اود کلیو دکروندو څخه $\frac{۱}{۳}$ او$\frac{۱}{۴}$پورې د حکومت ګدامونو ته سپارل کېدو.

۳ - د باجګېرۍ محصول و ، چې د کوچیانو او تجارانو څخه به لاس ته راوړل کېده.نن ورځ د باجګېرۍ یا باج اخستنې محصول د ګمرك په نامه سره یادیږي.

۴ - هغه نغد شته او مال و ، چې د کابل او کندهار د ځینو سیمو له خلکو [۲] نه را ټولیده ، دا محصول په هغو خلکو باندې دحکومت له خوا ایښودل شوی و، چې دوی د حکومت سره په عسکري چارو کې مرسته نه کوله.ددې د پاره، چې حکومت د نورو خلکو په څېر دوی هم د مملکت خدمت ته متوجه کړي وي؛ نو به یې نغدې پیسې ورباندې حواله کولې، دغه ځانګړی او فردي محصول (سري په سر) د حکومت د کالنیو شتو او عایداتو یوه ښه برخه جوړوله[۳]

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین. درانی تیمورشاه ۱۳۳۳ د ۱۵۲ مخ

(۲) دا خلک لوی کروندګر او شتمن وو

(۳) د زیاتو معلوماتو د پاره وګوری درانی تیمور شاه.

## د دولت لګښت :

د تیمورشاه د حکومت او زماني لګښت دادی :

۱ - د تیمورشاه په دوران کې د دولت غوره لګښت د حکومت د عسکرو تنخوا او معاش و ، دا تنخواخور لښکر دده په پاملرنه او خوښه سره جوړ او منځ ته راغلی و او هغه پخواني قامي لښکر يې ، چې د پښتنو څخه جوړ وه ده له وړې نه لرې کړ ، دده په تنخواخور لښکر کې پښتانه ډېر لږ وو ، عسکرو به خپله تنخوا هر یوه د فرمان له مخې د معاش د دوتر نه تر لاسه کوله ، د جنګ او سفر په وخت کې لکه چې د مخه په دې باره کې ویل شوي دي د یوه کال تنخوا د پیشکی په ډول اخستل کېده .

۲ - د دولت دوهم لګښت اعزازي تنخوا وه ، چې د قام مشرانو په کال کې په ترتیب او وار سره د شلوزرو نه تر شپږو زرو پورې او یا له دې نه کمه د پادشاه له خزانې نه اخسته ، دا تنخوا هغو ته د حکومت له خوا د خدمت په مقابل کې مقرره وه . سر بېره پردې دوی به څه نورې پیسې لږې او ډېرې د دسترخوان په نامه د دولت له خزانې نه تر لاسه کولې .

۳ - د سفر په وخت کې مصرف او لګښت: په دې کې به د ځارویو او حیواناتو خوراکي شیان او د لښکرو ډوډۍ شامله وه. دغه خرڅ او لګښت که څه هم د لارې په سر له خلکو څخه په زور او یا د کالنۍ مالیې په نوم پوره کېده، خو سره له دې دا د دولت بودجې ته یو درووند او ستر تاوان و [1].

۴ - د تېمورشاه په زمانه کې بل غوره او دورند خرڅ د دربار دسترخوان او د درانیو امیرانو مجلسونه وو، قبایلو مشرانو پرته له نغدې تنخوا د حکومت له پخلنځي یعنې کار خانې نه ډوډۍ هم خوړله. پادشاه او غټو رئیسانو به د اخترونو او نورو ښو شپو ورځو او وختونو کې قام او ولس ته ډوډۍ هم ورکوله، دا، ځکه په هغه زمانه کې بې ډوډۍ سړی (خان بې دسترخوان) ته چا د احترام او درنښت په سترګه نه کتل....

حکومت هم په داسې وختو کې د ځان په ګټه د خانانو او مشرانو د سیاست او حثیت د ساتنې په غرض له دوی سره له هیڅ ډول مرستې او بسپنې ډډه نه کوله، چې په ولس کې سر لوړي وي او اعتبار یې لا زیات شي. حکومت به په ډېرې خوښۍ سره د خانانو د ضرورت وړ شیان د خلکو د رضا او خوښې په خاطر هغوی ته ورلېږل،

---

[1] پوپلزی عزیزالدین، دراني تېمورشاه، ۱۳۳۳ کال، ۱۵٦ مخ

۵ - د لویو لارو د ساتنې په غرض حکومت او دولت دې ته اړو، چې عمومي سړکونو (لویو لارو) ساتنې ته یو قامي غټ مشر وټاکي او دا درووند کار هغه ته وسپاري ، دې لوی خان او مشر به په خپل قام او خلکو د پولیسو په څیر تانه کوله . ددغې درندې او لویې وظیفې په مقابل کې به حکومت دې سړي ته په کال کې یو موټی پیسې د دولت له خزانې نه ورکولې...

۶ - د پادشاه او د هغه دکورنۍ ځاني لګښت، چې د ضرورت په وخت کې به یې د شاهي خزانې نه اخست او په خپله به یې مصرف کاوه.

۷ - د هغو خانانو او مشرانو لګښت ، چې د جنګ او جګړې په وخت کې به یې ولسي افراد (ولسي خلك) د پادشاه له پوځ سره دکومك او مرستې په ډول پادشاه ته په واك کې ورکول، څو ، چې دده په ګټه په هر ځای کې ، چې وغواړي د هغه له فوځ سره اوږه په اوږه د مقابل دښمن د ماتې له پاره وجنګیږي [1] په دې ډول سره ځینې نور لګښتونه هم د دولت په غاړه وو.

---

[1] د زیاتو معلوماتو د پاره وګورئ درانی تیمورشاه

## د مالیې اجاره داري :

د سدوزیو په دوره کې د رعیت دزمـــکو مالیه پـه دې ډول سره تولېدله :

د رعیت او ولس دزمـــکو یوه برخه به د یو خان او مشر تر اداري لاندې وه. د اعلی دېوان یو مـامور بـه د خـالصې پـه نامــه د هغې غور کاوه. د اعلی د یوان د دوتر دې خانګې بـه د خانـانو دزمـــکو مالیـه د دوی د هغـه خدمت پـه مقـابل کـې ، چـې د حکومت سره به یې په نظامي چارو کې ترسره کـاوه، د تنخوا پـه نوم به یې ور معامله کوله. قامي مشرانو بـه د اعلی دېوان څخه ددېوان بیګي په مهر دبرات لیك تر لاسه کاوه. پـردې برسـېره قـامي مشـرانو د پادشاه د فرمان لـه مخې خپله مالیـه د اعلی دېوان څخه ایستلې وه[1].دا پـه‌دې معنا ، چې دغو کامي مشرانو (خانانو) به د حکومت خزانې ته مالیه نه ورکوله. دا ، ځکه ، چې خانانو د پادشاه او حکومت سره د جنګ او جګړې پـروخت — مرسته کوله او هـم بـه یې د خپلې سیمې خلك د پادشاه په پلو ساتل. د نور ولس مالیه ، چې د دوی لـه‌زمـــکو او مالونو څخه راټولېدلـه هغـه بـه د پادشاه خزانـې تـه د اعلی دېوان لـه لارې تـر سنجش وروسته سپارل کېده .

---

(۱) پوپلزی عزیزالدین ، درانی تېمورشاه ، ۱۳۳۳ کال

د لرې ملکونو او ښارونو دزمکې د مالیې درېیمه به په دې ډول ترسره کېدله ، چې د حکومت له خوا به یو اعتباري سړی د هغې د اجارې دپاره ټاکل کېده ، دې اجاره دار به دزمکې د مالیې د کالني کرښت او زراعت اجاره د مالیې په نوم له کروند ګرو نه اخسته ، ده به وروسته له دې ، چې مالیه را ټوله کړای شوه د یوزرګتې په مقابل کې د اعلی دېوان دوتر ته سپارله .

د تېمور شاه په دور کې د هند له ښارونو نه کالنۍ مالیه او باج د احمد شاه بابا د وخت په څېر د هند له نیول شویو ښارونو نه د اجارې په بڼه ټولبده ، دا شان د اهل هنو د دکاندارانو نه د باج او جزیې په نوم مالیه را غونډېدله ، دا مالیه به وروسته له جمع کېدونه د پادشاه خزانې ته تحویلېدله.

تاریخ پوهان او تاریخ لیکونکي په غوره دلیل سره وایي .
چې د تېمورشاه د سلطنت په دوره کې اقتصادي بڼه پیاوړې او د ډاډ وړ وه.دا ، ځکه ، چې ده د ضرورت وړ شیان د هند ، مشهد او ننني افغانستان له پولو او سرحدونو نه پوره کول . له دې کبله د اقتصاد له مخې دی (تېمورشاه) باندنیو هېوادو ته اړنه و ، د مالیې د سمې لارې د لاس ته راوړلو له امله ، چې په هغه وخت کې باب وه د هغه خزانه ښه ډکه وه.دا شیان د

تیمورشاه د حکومت په وخت کې د هغه د زماني اقتصادي بنه وه ، چې د لاندې دریو ضروري شیانو پوره توب او بسنې له مخې د ډاډ وړ ګڼل کېده.

**۱- کرنه (زراعت) او مالداري :**

د تیمورشاه په زمانه کې د کلیوالو لوی او درونـد کار د کرنې چارې وې [۱]. کروندګرو په عمومي ډول غنم ، اوربشې او نورې دانې لکه جوار ، وربشې او جودر کرل. دارنګه کروندګرو خټکي ، هندواڼې ، بادرنګ او صنعتي نباتات کرل ، چې د هغه وخت پر مختللې کرنه وه او کلیوال پرې بوخت وو. د کروندګرو د درمند ، کولبې او غوبل کولو ځاروي او وسایل د نن ورځې غوایان وو.

د تیمورشاه په وخت کې ټولو خلکو په تېره د درانیانو هرې کورنۍ درې او څلور جوړې غوایان درلودل، چې کولبه او یوې به یې پرې کولو. دا شان دوی د غوښو ، شیدو وړیو او پوستکیو دپاره غواوې ، وزې ، پسونه او مېږې د نن غونډې روزل او ښه پاملرنه یې ورته کوله.

د مالونو د درلودلو او ساتلو په لړکې د پسونو رزونه د درانیو غوره وظیفه وه. دوی د پسونو ډېرې ښې رمې

---

۱ الفنستن، د کابل د سلطنت او د هغو د توابعو د حال شرح، دوهم ټوک ، ۱۳۰ مخ

درلودلـې او ښه روزنه به یې کوله. دوی د خپل مال د پوولو او څرولو د پاره د وخت او موسم په تغییر سره د یو ځای نه بل ځای ته کوچېدل. د دوی په زمانه کې د نن په څېر اوښان او خره د بارونو د وړلو له پاره ډېر پیدا کېدل، په اوښانو باندې یې سر بېره پردې، چې لوی او درانده بارونه وړل د خرڅلا و د پاره هم ساتل کېدل. لکه، چې جوته ده ویل کېږي، چې په استحق زیو کې د اسانو او یابوګانو روزنه ښه پرمختللې وه.[1] زمکه د لویو خانانو په واك کې وه، چې په بزګرانو به یې کرله او هغو ته به یې د هغه وخت د معمول رواج سره سمه برخه ورکوله، چې څه ګوزاره به یې نه پرې کېدله.

**۲- صنعت (هنر):**

که څه هم د تېمورشاه په وخت کې کورنیو شخړو او عسکري فعالیتونو د صنعت د انکشاف او پرمختګ زمینه له منځه وړې وه، مګر سره له دې هم نفیسه ضایع او مامولي صنعت تر ډېره حده پورې د ډاډ وړ وو.

**نفیسه صنایع**: د تېمور شاه په زمانه کې نفیسه صنعت د پادشاه په شخصي مینه او د امیرانو په پاملرنه ښه وړاندې تګ کړی و مګردا، چې د هغه وخت تاریخي مانۍ او عمرانات له منځه

---

[1] الفنستن، د کابل د سلطنت او د هغو د توابعو د حال شرح، دوهم ټوک، ۱۳۱ مخ

تیمور شاه د افغانستان په تاریخ کې د خپل پلار نه وروسته په (۱۷۷۳ع) کال کې د افغانستان د سلطنت پر تخت کیناست [۱]

د شهزاده سلیمان د پادشاه کېدو . د وخت او مودې په برخه کې . چې ثومره وه . د احمد شاه بابا د مړینې او له هرات نه کندهار ته د شهزاده تیمور تر راتلو پورې صحیح او سم معلومات نشته . چې د ده د پادشاهۍ وخت ترې جوت شي . خو ( د شهزاده سلیمان استاذ ملا پیرمحمد کاکړ . چې د پښتو ژبې یو ګرامر یې د معرفت الافغاني په نوم د خپل شاګرد شهزاده سلیمان په نوم اهدا کړی دی ) د ملا پیر محمد کاکړ د دغې اهدا د نظمونو له بیتونو ثخه جوتیږي . چې د سلیمان د سلطنت او پادشاهۍ په وخت کې یې لیکلی دی [۲]. چې د سلطنت موده یې له درو میاشتو نه زیاتیږي

[۱] احدیزاده امین الله . د ۱۲ تولکي تاریخ . ۱۳۴۶ کال . ۲۶ مخ

[۲] پولپزی عزیزالدین . درانی تیمورشاه . ۱۳۳۳ کال . ۳۲ مخ

# د لوی خدای په نامه

## سریزه :

د افغانستان د تاریخ یوه په زړه پورې غوره او سپېڅلې برخه پر احمد شاه بابا او د هغه په‌اولادې پورې اړه لري. د افغانستان د تاریخ دغه دوره د خپل ارزښت له مخې ډېره ځانګړې بڼه او خاص ځانګونه لري

په دغه تاریخي دوره کې د افغانستان او د هغه د ګاونډیو هېوادونو تر منځ اړیکه او ځینې نور خاص موضوعات د دغې دورې ارزښتناکه خزانه ده، چې د افغانستان د تاریخ په پاڼو کې ځای شوې ده او د پوهانو د توجه وړده

د احمد شاه بابا او د هغه د اولادې د پادشاهۍ او ددوی د واکمنیو په باره کې بهرنیو او داخلي پوهانو ډېرې زیاتې غوره په زړه پورې او ارزښتناکې څېړنې کړې دي ، چې هره تاریخي څېړنه په خپله برخه کې ډېره باوري او ددوی د ژوند او پاچاهۍ د حال په برخه کې بې سارې بیلګې دي او زمونږ د هیواد د ملي تاریخ په څېړنه کې یو ځانګړی باب او څپرکی دی، چې د تاریخ

څېړنو له [illegible] په بنه شان سره جوت شوي او د [illegible] تاریخي ارزښت [illegible] درلودونکی دی

زه د خپلې دغې تاریخي څېړنې په باب ددغه ټکي یا دونه کوم چې :

دغه تاریخي څېړنه یوازې او یوازې د تیمور شاه او د هغه د پادشاهۍ په باره کې ده پوهیږم ، چې د تاریخ پوهانو له پاره به په سین (سیند) کې د څاڅکي په شان وي ، دا ځکه ، چې زه د تاریخ سره دومره آشنایي او بلدیت نه لرم ، خو کوم هدف ، چې په د غې کوچنۍ او مټکۍ تاریخي څېړنې په برخه کې تر نظر لاندې نیول شوی هغه د تیمور شاه د پاچاهۍ او دده د پاچاهۍ په اداري ، نظامي او ادبي تشکیل او د قام د مشرانو سره دده کړنه راجوتوي ، چې تر اوسه پورې په پښتو ژبه کې دغه شان یوه ځانګړې څېړنه ، چې تحقیقي بڼه ولري په دې باب تر سترګو شوې نه ده . په دغه تحقیقي څېړنه کې له ډېرو معتبرو او لوړو ماخذونو لکه ( سلطاني تاریخ ، سراج التواریخ ، درانی تیمورشاه ، عروج بارکزایی ها ، رجال ورویدادهای تاریخي احمدشاه ، بالاحصار وپیش آمدهای تاریخي، د پښتنو تاریخ ، پښتانه د تاریخ په رڼا کې،د کابل د سلطنت بیان او افغانستان) څخه استفاده شوې ده ، چې د دغو ماخذونو بشپړه پېژندنه د مجموعې په آخر کې پوریخه څرګنده شوې ده

کوچنۍ تاریخي موضوع څخه د علم او تاریخ پوهان ، چې ما د وس او توان په اندازه کښلي څه تته غوندې رڼا ووینې ، باور لرم، چې د تاریخ د ځانګې نور پوهان به د تیمورشاه د دورې هر اړخیز انځور په راتلونکې کې وکاږي او دا تاریخي لړۍ به په پښتو ژبه بشپړه کېږي

زه د خپلې دغې تاریخي څېړنې په چاپ او خپراوي کې د پښتو ژبې د زړور مینه وال ، فرهنګي او د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکزد موئسس ښاغلي امام الذین ساپي څخه ډېره مننه کوم ، چې د کمپوز د لګښت ترڅنګ یې دا کتاب په وړیا توګه چاپ او خپور کړ

لوی خدای ج دې ستر اجرونه ورپه برخه کړي

په درنښت

سر محقق علي محمد منګل

علومو اکاډمی - کابل

دا بیخي جوته ده ، چې هر افغان په خپل کلي او د خپل ماحول په شرایطو او هم د خپل لوی چاپیریال په هسکو تیتو کې رالوئیږي؛ نو دیته اړ دی ، چې د خپل ژوند. کلي او د هېواد د تېر ، او سني او راتلونکي تاریخ په باره کې خامخا یو څه اوري، زده کوی یې او خاصه آشنایي ورسره پیدا کوي ، دا دژوند غوښتنه ده او د هر چا سره مله او ملګرې ده.

ددې خبرې غوره او پوریخ مفهوم او مانا داده ، چې هر څوك له خپل ژوند او تاریخ سره مینه او علاقه لري. دا هم بیخي جوته او منلې خبره ده ، چې هر چا ته خپل وطن ، کور ، کلی او خپل تېر او اوسنی تاریخ خوږ او ډېر په زړه پورې برېښي او خاصه مینه ورسره لري ، چې د خپل تېر او اوسني تاریخ سره څه نا څه آشنا شي او د خپل وطن او د پلرونو او نیکونو له ژوند او سربښندنې نه خبر شي، چې زموږ د خاورې او پلرو تاریخ څه شان و ؟ او څه پیښې او جګړې د پېړیو په اوږدو را اوږیدو سره په کې راغلي دي...

د سریزې په پای کې په ډاګه سره وایم : کوم څه ، چې په دغه مجموعه کې د دراني تیمور شاه د ژوند او د هغه د پ چاهی د وخت په برخه کې را غونډ کړل شوي دي . د خور چا نه بیه لري او ده د زماني د راخ ګند ندو کوچنی هنداره ګڼل کېدای شی ، چې په پښتو ژبه د یوې څېړنې او تحقیق په توګه له د..

# درانی

# تیمور شاه

څېړنه: سر محقق علي محمد منګل

۱۳۸۲ هـ ش

Dur Timur shah d. I

# درانی

# تیمور شاه


خیړنه : سر محقق علي محمد منګل



۱۳۸۲ هـ ش








# پېژندنه


**د کتاب نوم** : **تیمور شاه دراني**

**څېړنه** : سرمحقق علي محمد منگل

**کمپوز** : د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز

**کمپوزر** : **انعام الدین "ګوهر اندیش"**

**د کمپوز ځای** : د میرزاخان او احمدزی کمپوزنګ
سنټر ګل حاجی پلازه اطاق نمبر۲۰۸
یونیورسټي روډ پېښور تلیفون ۸۵۳۵۴۹

**د چاپ کال** : ۱۳۸۲ هـ ش

**تصحیح او چاپ چارې** : د ساپي پښتو څېړنو او پراختیا مرکز
فکس تلیفون ۵۷۰۴۵۰۶ ۰۹۱

# لړليک